# له نرګس تر نرګس

د

پیر محمد کاروان

د لنډو کیسو لومړۍ مجموعه



خپرندوی

د ناهید کتاب خپرولو مؤسسه

## د کتاب پیژندنه

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : له نرگسه تر نرگسه |
| لیکوال | : پیر محمد کاروان |
| خپرندوی | : د ناهید کتاب خپرولو مؤسسه |
| د خپرونو، نومره | : ۷ |
| د خپرویدو نیټه | : جوزا ۱۳۷٤ هـ ش (جون ۱۹۹۵ ع) |
| چاپځای | : لاهور |
| تیراژ: | : ۱۰۰۰ |
| د کمپیوتر سمبالوونکی: | اجمل سنګریار |
| د پښتۍ انځورګر | : استاد پاوند |
| بیه | : ۲۰ روپۍ |

# اهداء:

ـ دایمل پسرلي په نوم چې د لندن په ماښامونو کې یې د پښتو ادب (ډیوه) بله کړې ده.

ـ زما د ادبي بنډارونو د ډیرو خوږو ادیبانو لیکوالو او شاعرانو ملګرو هر یوه.

نورالحبیب نثار، باز محمد عابد، حنیف خلیل او مصطفی سالک په نوم.

# پـــه دغـــه جـونـگ کــــې

بسم الله الرحمن الرحیم

## توکل پر خدای

لوستونکي به حیران شي او وایي به چې ستاپي له لنډو کیسو سره څه؟ رښتیا هم زما یې له لنډو کیسو سره څه؟ د شعر له سندریزې ښاپیرۍ سره څه ناڅه د یارۍ تار لرم او ددې کوډ ګرې ښاپیرۍ مینې مې په زړه کې ځای نیولی دی. دلته پر ما هم د هغه سخاوت مند مین کانه شوې ده چې هر ښکلي پر لاره ورشي او څه لږ او ډیر د زړه وړلو (دلبرۍ) په چم پوهیږي دی به د زړه ست ورته کوي. که څه هم په زړه کې یوه مینه ځاییږي خو راځئ رښتیا رښتیا به درته ووایم:

زه نه پوهیږم کله چه د لنډې کیسې پر (شهرزاد) مې سترګي لګیدلې دي خدای شته چې سترګې مې وربانديې خوږې شوې دي. ما داسې انګیرلې ده چې د کیسو د یو زړاویو شپې اتله (شهرزاد) هم هماغه د شعر سندریزه ښاپیرۍ ده چې د نثر ساده جامې یې اغوستې دي. په زړه کې مې ویلې چې راځه له دې سره هم د یارۍ تار وغځوه.

د خپل زړه مې ومنل او د لنډې کیسې له دې ساده ښا پیرۍ سره مې چې په هره ساده ګۍ کې یې سل نیرنګونه پټ دي مینه پیل کړه. دا چې راته خندلې یې دي که را باندې خندلي یې دي، په دې زه هم نه پوهیږم. په دې به هغه نندارچیان وپوهیږي چې یوه شیبه مو وځاري او نندارې مو وکړي.

هغه څه چې په دې کتاب ګوتې کې یې د لنډو کیسو په نوم لولئ، زه هیڅکله دا دعوه نه کوم چې د لنډې کیسې په تله پوره دي. د یوې بریالۍ لنډې کیسې لیکنه ماته د خونکار پاچا د لور شمایلې شرطونه ښکاري چې تر سره کول یې ډیر هنر غواړي. په دې لیکنو کې مې فقط او فقط له ځینو پیښو سره مینه ښودلې ده. هغه پیښې چې د شعر په نازکه غیږ کې مې نه شوې ځایولی په دې ډول لیکنو کې مې ځای په ځای کړې. زه په دې باوري یم چې د کتاب ډیرې

ليکني به د لنډې کيسې ترڅنګ هم نه وې تيرې شوې خو سره له دې نيمګړتياووزه نه پوهيږم چې خوند به يې څنګه وي؟ که خوند يې هم ښه نه وي بيا خو واى زما پر حال! او که خونديې ښه وو بيا خو راته ووائى څکه داسې ډيرې نورې مې هم په زړه کې غوټه کړې دي چې بيا خو يې راوسپړم او پر تاسويې هم وګورم.

د دې کيسو ته ورته ليکنو اتلان هغه څيرې دي چې له نن نه واخله د تيرو څو کلونو د پيښو په بهير کې مې له نژدې نه ليدلې، پيژندلې او څارلې دي. په ډيره مينه مې غوښتي چې د کيسو د اتلانو څيرې د دوى له پيښو سره ښکلې انځور شي. که په ډيرو ځايونو کې د اتلانو او پيښو انځورونه تت راغلي وي ګناه به زما وي، د پيښو او اتلانو ګناه به نه وي. دا زما له ليکنو سره ليونۍ مينه وه چې د شعر تر څنګ داسې څه هم وليکم. مينه خو نازولې وي او پر نازولو خو څوک ظلم نه شي کولى. که په خپلو دې ليکنو کې ډير بريالى نه يم نه به يم. مينه او ناکامي هم څه ډير سره لرې نه دي، خو پر دې هم باوري يم چې د ناکامۍ پر للمه د بريو د باران او ګلونو کلي ته لاره تللې ده. دا زما د دې ډول ليکنو پيلامه وبولئ اوس به ښه نه يم که ژوندو، ورو، ورو به ښه شم.

وروستۍ خبره زما د ليکنو يا په بل عبارت زما د لنډو کيسو د خپرولو ده. که د ايمل جان مينه او پيرزوينه نه واى، که د دوى معنوي او مادي مرسته نه واى، بيا خو زه چيرې او د کتاب خپرول هغه هم د لنډو کيسو کتاب. د کتاب له خپرولو نه وړاندې زړه نازړه وم ويل مې چې خلک (نقادان) به څه وايي؟! د ايمل جان له مينې نه يوه دنيا مننه چې د کتاب په خپرولو کې يې زما زړه غښتلى وکړ او دا دى له نرګسه تر نرګسه خپروم.

توکل پر خداى.

خلک دې هر څه هر څه وايي...

په ډيره مينه او په ډيرې عاجزۍ.

کاروان، پيښور ۱۳۷٤/۳/۱۵ 1995/6/5




# وروستی نښبه

ډیر راته گران و. ملگری چاته نه وی گران! له هغه سره مې ډېرې خاطرې تړلې وې. زه پر هغه بیخي مین شوی وم. ښومره ښکلی و، غټې غټې قهوه يي سترگې په دنگه غاړه ښايسته وریښمین دسمال، ښايسته اندام. چې په مینه به مې ورته وکتل نو خوله به يې راوړاندې کړه او ما به ښکل کړ. دښکلا په څنگ کې زما دژووند لپاره گټور هم و. زه او هغه دډېرو سختو لارو ملگري وو. زه هغه ته ډېر گران وم. که به مې چالاکي ورسره وکړه هم نه رانه خپه کېده. په کومو لاروکې به چې دمایینونو خطر و دی به مې مخکې کړ او زه به وروسته ورپسې روان شوم . ما به دده په پلونو کې پلونه اېښودل چې دمایینونو له خطرنه وژغورل شم.

ما او ده په گډه زموږ دکور اړتیاوې پوره کولې. ډېرې شپې مو یو ځای په واورینو غرونو کې تېرې کړې وې. زما غوندې سړيچن نه و، په یخ ژمي کې به مې لوخ کړ او دده په کالیو کې به زه اوده شوم. ډېر به دده دگرمې سینې په خواکې اوده کېدم. کله کله به مې دده پرځنگانه سر ولگاوه. دسپوږمۍ په سپینو وړانگو کې به مې دلوړو غرونو ننداره

کوله. هغه لرې لرې غرونه چې دورځې به يې زه او دی په مزل ستړي کړي وو سره نژدې شوي به وو. دیو اوبل په غېږ کې به يې سرونه ايښي وو او له يو بل سره به يې مينه کوله.

څومره ښکلي برېښېدل لکه د يوه ښه انځورګر د تابلوګانو ننداړتون. ده به هيڅ غږ او غوږ نه کاوه. خدای خبر چې ستړی به و او که به يې زما شاعرانه خيالونه نه ړنګول. په دې ښکلو خيالونو کې به خوب يووړم. ټوله شپه به مې خوږ خوب وکړ. عجيبه هوښيار و. کله به چې سپېدې وچاودې نو سر به يې زما په غېږ کې کېښود. ددې لپاره چې راباندې ناوخته نه شي راويښ به يې کړم. زما سترګې به له خوب نه ډکې وې، له ډېرې ستړيانه به مې هډوکو درد کاوه. غوسه به راغله او پر مخ به مې سخته څپېړه ورکړه خو دده په څېره کې به مې يوه زره غوسه هم ونه ليده. زړه به مې پرې وسوو. دهغه پر دنګه غاړه به مې غېږ وګرځوله او ښکل به مې کړ.

له ډېرو ښو عادتونو سره يې يو بد عادت هم لاره. دده يوازې زما سره جوړه وه او يوازې ماته رام و. دبل چا سره يې پر لاره دتګ زړه نه کيده. يوه ورځ زه سخت رنځور شوی وم، زما ملګری زما دپلار سره ملګری شوی و. دوی دواړه ښار ته تللي وو، په ښار کې مې پلار ښه ډېره سودا اخيستې وه. دسودا ټول پېټی يې زما ملګري پر اوږه کړی و. داځل دده سترګې دمينې پر ځای له غوسې نه ډکې وې. پلار مې دده په طبيعت نه پوهيده.

په آسمان کې ناڅاپه الوتکې راغلې. الوتکو يوه دوره وخوړه او په دوهمه دوره يې بمونه وغورځول. زما ملګری دبمونو له اوازه وويريده او دځنګله پر لورې يې منډې کړې. زما دپلار پرغږونو يې ځان ونه پوهاوه. دخېريو پر ځنګله ورننووت. پېټی يې له اوږې ولوېده.

په هغه ورځ ددوی نه راتلو ماته اندېښنې راواچولې. ډېر خپه

وم چې زما پلار اوزما ملګرې ولې نه راځي خدای دې نه کړي چې څه بده پېښه نه وي شوې ؟لمر دلویدیز پر غرونو لانه وپنا شوی چې دوی راورسیدل . زه مخې ته ورغلم . له پلار سره مې لومړی ستړي مشي وکړه .پلارمې ډېر ستړی معلومیده ، ماهم ډېرې پوښتنې ترې ونه کړې . زما دملګري ښه بدله وه . په خولو کې لوند خیشت و . دغاړې وریښمین دسمال يې شکیدلې و او غاړه یې نوکارې نوکارې وه . په غټو غټو قهوه يي سترګو کې یې اوښکې پنډې وې . ډېر سخت زړه مې پرې وسوو. خوله یې راوړاندې کړه خوما دخلکو له شرمه ښکل نه کړ.

کله چې زه له رنځ نه ښه شوم بیا زما اودده ملګرتیا شروع شوه . بیا تور غرونه، سپېرې دښتې وې او زموږمزلونه .په سرو ګرمیو کې به مو شپه ورځ مزلونه کول . یوه ورځ په سره غرمه کې راروان وو ، دواړه په خولو کې خیشته پیشته وو . زه ښه وم خودده پښې سستې شوې وې او په څه خوارۍ کورته راورسیدو . زه ډېر سخت وږی شوی وم خو دده هېڅ شی ونه خوړل . دده زړه ګرمۍ خوړین کړی و. درې ورځې يې هېڅ شی ونه خوړل پر څلورمه ورځ يې کنډوکي کنډوکي وینې قی کړې او دژوند دروند پېټی یې له زخمي اوږې نه کوز کړ.

دده په مرګ ډېر سخت غمجن شوم ، ځکه چې ډېر ښا یسته و، ښه او وفادار ملګری مې و، له هر څه نه زیات داچې زموږ دکورنۍ ساتونکی و.ما ډېر چورت وهلی و ، دده ځای په اسانه نه ډکیده. دداسې ښه ملګري او ښه خدمتګار د پیدا کیدولپاره ډېر تاوان ته اړتیا وه . موږ باید یوه لنګه غوا او یو دقلبې غوایی خرڅ کړی وای . دې هرڅه زه ځورولم . دده پر مرګ مې یو ه غمجنه مرثیه وویله . دا مرثیه به مې هر چاته اوروله . په دې مرثیه ډېر داسې کسان هم پوهیدل چې هېڅ له شعر اوادب نه نه ووخبر. هغوی زما دملګري ټول خویونه لیدلي وو .چې دملګري مرثیه به مې چا ته اوروله نو هغوی به ډېر خپه شول . دمرثیې په

پای کې به ما وخندل . رښتیا به درته ووایم چې زما دا خندا به له ژړانه هم ترخه وه . ماوې که چېرې زه هم د مرثیې له ویلو وروسته ونه خاندم نو هغوی به وایي چې دی دومره خپه اووار خطا دی ؟!

ما ته له خپل ملګري نه دوې نښې را پاته وې . دهغه یوه نښه چې مادي ګڼه یې لرله هغه مې ښه سمبال کړه . بله نښه چې مادي ګڼه یې نه لرله همداسې په خاورو کې پرته وه .

یوه ورځ مې د خپل ملګري پر خاورو پرته نښه ولیده . دهغه غټې غټې قهوه یي سترګې مې سترګو ته نېغې ودرېدې . لکه چې په مرګ یې هم له ما نه مینه او پیرزو ینه غوښته . تېرې شېبې مې پر زړه را وورېدې ، هغه شېبې چې خوله به یې د ښکلولو لپاره را وړاندې کړه او ما به په مینه مینه ښکل کړه . زړه مې پرې وسوو . د خپل ملګري په وینو سره نښه مې را واخیسته او دهغه کنډو پر سر مې ښخه کړه چې مازدیګر مازدیګر به زما ملګري د خپلو ښکلو اندامونو او قهوه یي سترګو ننداره را ته جوړوله .

څو ورځې وروسته مې پلار زما د ملګري د وروستۍ نښې د خرڅولو وویل . وې یې چې ښار ته یې یوسه ، خرڅه یې کړه او پر پیسو یې ګوړه او چای راوړه . په زړه کې مې وویل :

ـــ خدای دې وکړي چې ډېرې پیسې پرې وشي چې د ګوړې او چای په څنګ کې کتابونه هم پرې واخلم . د خپل ملګري وروستۍ نښه مې پر دکاندار باندې په ډېرو پیسو خرڅه کړه . د ګوړې او چای تر څنګ مې کتابونه هم پرې واخیستل . زما د سورکي اوښ څرمن څومره بختوره وه .

خیبر پلازا پېښور ۱۹۹۱/۳/۱

# زرکـــــه

بیا یې دخپلووړوبچو له پاره په سره مښوکه کې څه راوړي وو، چې بچې یې ماړه شي ، رالوی شي، مستې غاړې ووهي، خرامان خرامان وگرځي ، په مینه مینه الوتنې وکړي او دغونډۍ ښکلا زیاته کړي.

ډیره خوشحاله وه. له لرې الوتنې وروسته به په سرومنگولو خرامانه خرامانه روانه شوه. خپلو بچوته یې تلوسه وه او خپل مین ته یې مینه وه. لاغونډۍ ته نه وه رارسیدلې چې موسکۍ ښه یې ویرجنه شوه. غونډۍ په تورلوگي کې پټه وه. دغونډۍ تکې شنې ونې سوځیدلې پرتې وې . دغونډۍ ډبرې تورې تورې وې . لالهانده وگرځیده ، خپل مین او خپل واړه بچي یې ونه موندل.

اوس هم دخپل مین په یاد په غونډۍ کې یوازې گرځي ، الوتنې کوي او دغم کوکارې وهي .له غونډۍ نه چاپیره طوافونه کوي ، له غونډۍ سره یې ازلي مینه ده، ځکه چې په دې غونډۍ کې زیږیدلې ده. یووخت دژمي په یخنۍ کې تودوملکونو ته مهاجره شوې وه، خوبیا یې هم نوموړې غونډۍ یادیده . کله چې پسرلی شو، نودزرکوپه یوه لوی سیل کې نوموړې غونډۍ ته راغله.

زرکه اوس پیغله شوې وه . په سرومنګولو به خرامانه ګرځیده. په مستوناروکې یې مینه ګډیده . هغه د مینې په لټون وه او د تنهایئ ژوندخوندنه ورکاوه.

یوسهار په یوه خواږه اوازدنازله خوبه راویښه شوه. ګوري چې دغونډۍ د یوې لویې ډبرې پر سر یو مست اوښایسته زرک ناست دی. داسې مسته غاړه وهي ، چې ټوله غونډۍ ورته غوږ غوږ ده . د زرک له مستوناروته مینه وریږي . ته به وایې هغه هم له خپلې تنهایئ نه په عذاب دی. جوړۍ غواړي ، او یوداسې همرازغواړي، چې د زلمیتوب ډک زړه ورته تش کړي. یوځای ورسره والوزي اوپه غبرګو غاړوکې د مینې سندره ورسره غبرګه کړي.

مست زرک پرله پسې غاړه وهله . خدای خبر، چې د زرک په خوږو ناروکې څه جادوګډو . زرکه په ځان هم نه وه پوهیدلې ، چې په خرامانو قدمونو د مست زرک خواته روانه وه او بیاله زرک سره د لویې ډبرې پر سرغبرګه ناسته وه او دواړو د یوبل په ښکو کې منبوکې وهلې.
دواړو د مینې تړون وکړاو ترنوموړې ډبرې لاندې یې د مینې ځاله جوړه کړه. د ډبرې پر سرېې غبرګې غاړې ووهلې. ډیرځله یې غونډۍ په خپلو غبرګو غاړو مسته وساتله . دغونډۍ په شاوخواکې یې د مینې الوتنې وکړې ، دخپلې مینې داستان یې دغونډۍ هرې ډبرې اوهر بوټي ته ورساوه .اوس هم زرکه دخپلې مینې ځای ته راځي ، هغې ډبرې ته چې دهغې پر سرېې له خپل مین سره غبرګه غاړه وهله، خو اوس هغه ډبره ذرې ذرې ده. زرکه دغم کوکارې وهي ، ګوندې خپل مین او خپل بچې پیداکړي.

اوس له زرکې نه خرامان قدمونه هیر شوي دي . که کوم شاعر دهغې تکې سرې سترګې ولیدې غمجن به شي ، او دهغې لیلاله سترګوسره یې نه شي تشبیه کولی ، چې دخپل مین په وصال سیرابې وې

. اوس دزرکي لـه سرو سترگوسره بل ډول تشبيه ترلي ده ، اوس دزرکي تکي سرې سترگې دهغې محبوبې سترگوته ورته دي چې « يايې يار مړوي يايې ډيرژړلي وينه »!

اوس دزرکي له مستې غاړې نه دمستو ترانو پر ځای دوير ترانې راځي . دغونډۍ پر هره ډبره او هر بوټي نارې وهي ، دغم نارې . په دې نارو کې دخپل مين او خپلو بچو ويرنه« مرثيه » غونډۍ ته بيا بيا ور اوروي. دغونډۍ پرسر داوسپنې شاهين الوتنه کوي. زرکه کنه شوې ده ، داوسپنې دشاهين بوږنوونکی غږهم نه اوري ، يوازې دخپل مين او بچو دوير سندره توده ساتي .

تني دچور کونډي دځنگل لمن ۱۳۶۹

# شـــپـــونـــکۍ

داسې ښـا يسـتـه منظره يې په ټول عـمـر کې نه وه ليـدلي .تکه شنه ورشـو، د سپـينو اوبـو روانه ويا له،رنګيـن ګلونه،ښکلي مـرغـان.خـپلې ميږې هم بدلې بدلې ورته ښکاريدې.خپله مـاشومـه لور غوټۍ ورته ډيره ښا يسته بريښيده .لکه د پرښتو تکې سپينې جامې په غاړه،په تورو څڼو کـې يې سـره او ژيړ ګلونه ټومـبلي وو.پر شـونډو يې خـوږه او مـالګينه موسکا غزيدلې وه.له خپلو ميږو او تکوسپينو وريو سره مشغوليده.

دمور زړه له ډيرې خوشحالۍ نه په درزا شو اوناري يې کړې:

ــ غــوټۍ لورې! وه غــوټۍ لورې!

غوټۍ يوخوابل خوا حيران حيران وکتل.دمورپه ليدو يې غبرګ کړ:

ــ وای مـورې ته دلتــه څـه کـوې؟!

دمـورغـيـږې ته يې په منډه منډه ځـان ورسـاوه.دمـور له ستـرګـونه در در،دخوشحالۍ اوښکې راوبهيدې.غـوټۍ يې ټينګه په غيږه کې ونيوه اودومـره يې ښکل کـړه چې مخ يې لکه دګـلاب د تنکۍ غـوټۍ تک سـور واوښت.

ــ غوټۍ ، زما خوږې غوټۍ ، ته خو زموږ نه ورکه وې . د میږو رمه دې هم رانه ورکه کړې وه . پلار دې په تا پسې ډیر خپه دی . وړوکی وزور دې ډیره ډیره یادوي ، ستا تکې سپینې میږې هم یادوي . وایې چې غوټۍ خور مې څه شوه ؟ چیرې لاړه ؟ زما میږې یې څه کړې ؟ زه سپوره ډوډۍ نه شم خوړای ، زه شیدې او مستې غواړم ، زه کوچ غواړم . کله یوه بانه کوي او کله بله بانه . ستا په لیدو به څومره خوشاله شي ! پلار به دې څومره خوشاله شي ! زرکوه غوټۍ څه چې ځو . راځه چې رمه هم بیا یو ، بس دی ډیرې دې وڅرولې ، مړې دې . گوره ! دومره مړې دې چې خپلې گیډې هم نه شي وړای . غوټۍ له خندانه شنه شوه . په ناز او کرشمو یې خپلې تورې څنې څنډ وهلې :

ــ مورجانې ! زه نه ځم ، خپله رمه مې هم نه بیایم . زه په دې گلونو کې ډیره خوشاله یم . ته د دې ویالې او به وڅښه له شربت نه هم خوږې دي . زه له دې خوږو اوبو نه چیرې ځم !

د میږو رمباړې پورته شوې . وریو په ترپکو ترپکو یو خوابل خوا تړپونه ووهل . غوټۍ وویل :

ــ وگوره مورجانې ! دلته زما میږې اووري ډیر خوشاله دي . دلته زما میږې ډیرې شیدې کوي . زه نه ځم . . . نه ځم ، نه ځم ، نه ځم . . . . . .

مورېې خپه غوندې شوه . ویې ویل :

ــ غوټۍ لورې ! ته له موږ نه پرڅه گیله منه یې ؟ که ته له ماسره کورته لاړه نه شې زموږ زارې به وڅوې .

د مور له سترگو لکه چینه مړې مړې اوښکې روانې شوې . غوټۍ بیا له خندانه تکه شنه شوه . د مور پرمخ اوښکې یې په خپلو وړو او تنکیو گوتو پاکې کړې .

ــ مورجانې ! ته مه ژاړه ، زه له تاسو نه گیله منه نه یم . زه ډیره خوشاله یم .

خپله وړوکې خولګۍ يې د مور پر سترګو کېښوده او مور يې ښکل کړه. په دې وخت کې د غوټۍ پلار غږ وکړ:

ـــ پاخه! لمونځ دې قضا شو..... داځه دغم خوب دی چې نه ويښيږې!

دغوټۍ مور کړيکې وکړې:

ـــ غوټۍ! زما جنتي غوټۍ! زما شهيدې غوټۍ! زما وړې شپونکۍ.......!

له کټ نه پاڅېده. ټکرې يې پر سر کړ. لکه ليونۍ د بام پر سر وختله. صحرا ته يې وکتل. هغې صحرا ته چې غوټۍ به ميږې په کې څرولې. په صحراکې يې دسکڼ توغندي لويه کنده وليدله. دکندې له غيږې نه دميږو وړی بادونو همغسې يوه خوا اوبله خوا تښتولې.

۱۳۶۸ کال تنې دوړې خيسوره دنښترو دځنګل لمن

# دمستوکنیوه

ګلې ګلې غواوې راروانې وې. دغواووپه سترګوکې ویره ښکاریده .
په غوجلوکې وروخوسیورمبارې وهلې. ځنګل ژړا او فریاد ونو پر
سراخیستی و. موریې دژړااو فریاد ونواواز وپیژانده . هغه وپوهیده ،
هغه په هر څه وپوهیده. په زړه کې یې سرې لیکې تیرې شوې . له
جونګړې راووته:

ـ ستا پر مړي مې ودروې، پر تامې بوره کړې، نه مې درته ویل چې له
هلکانوسرد مستي مه کوه.

له ډیره قهره اوله ډیره درده یې وخندل :

ـ خدای خبردی ته به بې غمه ویده شوی وې . پوهیږم... پوهیږم...
ببری په یبلو پښبوله ځنګل نه راووت .دخپلې جونګړې خواته په
منډه ،منډه راته ، دباندوسپویې ژړااو فریادونه واوریدل. سپوورمنډې
کړې اوحمله یې پرې وکړه . ببري په زوره چیغې کړې:

ـ کورې! کورې ! په پړانګ وداړل شئ !

سپي ورنژدې شول ، ببري په ډیرې چالاکۍ له خپلې نرۍ ملانه دډوډۍ
دسمال خلاص کړ. وچ سوکړ ک یې سپوته لرې وغورځاوه. موریې له

ډېره قهره غاښونه ورته وچيچل:

ـ خدای دې په لېونيو سپو وخوره ، چې نه په دم روغېږې ، نه په دارو.

ـ ښه وشول ډېرښه وشول ، چې زمانصيحتونه دې نه اورېدل . هسې هم خدای سپېره پيداکړی يې اوس به ... .

ببری په ماته ساه اوپه سلګيو ، سلګيو جونګړې ته راورسيده . له رسيدوسره سم يې مورپه ځپېړوکې پټ کړ. په يوه اوبل مخ يې دومره وواهه ، چې دمورڅپيړې پرې وسوې. دببري چيغې بيا په باندې کې خورې شوې . پانې دببري پيغلوټې خوروړمنډې کړې، دمورلاسونه يې کلک ونيول موريې له زنې نه ونيوه :

ـ بس دی مورې مه يې وهه، خدای ته ګوره مه يې وهه. موږ ته به خدای داسې مکره (مقرره) کړې وي

موږبې له خدايه اوبې له ببري نورڅوک لرو ؟

خوريې هم په ژړاشوه. ببرې دکلې په لوري منډې کړې :

ـ قسم دی که له تاسوسره يوه شپه هم تېره کړم.

دکلي په لاره روان شو. موريې ښيراوې ورته وکړې :

ـ ورځه خدای دې ترې تم کړه. خدای دې په بمونو والوزوه . هسې دې هم زموږ بخت په کاڼووېشته ، سپېره اوس وچه خوله ګرځه .

پانې دموريه خوله لاسونه کېښودل ،په ژړغوني غږيې ورته وويل :

ـ مورجانې ښيراوې مه ورته کوه، موږ څوک لرو ؟

دپانې مورژړااوسلګيو ونيود ، هغه له ډېره درده په ځمکه راولويده ، پانې نارې سورې ګډې کړې . دباندوله جونګړونه ښځې راووتې :

ـ څه وشول پانې څه وشول ؟ ؟

ـ پر مورمې پيريان راغلي دي.

ګاونډۍ ښځې ورغلې ، دپانې موريې ځمکه پرته وه. يوې ښځې يې

سرپر خپلو ځنګنونو کېښود . کليمه يې ورته وويلې ،لااله الا الله محمدرسول الله .دخدای له پاره مه يې په عذابوئ ، کافرخو به نه وئ ؟
تورسرې ده ،تاسې به هم خوينديې ميندې لرئ !
نوروښځوهم کليمې ورته وويلې ، دپاڼې دمورزړه يوڅه سپک شو ،
سترګې يې وغړولې . ښځوورته ويل:
ـ کليمه ووايه خورې ،دپاڼې مورکليمه وويله ، ګاونډيوښځوتسله
ورکوله، داهرڅه دخدای له طرفه دي ، خدای دې ببری درته ژوندی
لري.څه چې له خدايه راپيښيږي په هغې به صبرکوو.
ګاونډ ياڼې يې چې خپلو جو نګړوته لاړې، نو دببري موربيا په
ژړا پيل وکړ. ځانته يې ښيرې کولې:
ـ زمالاسونه دې مات شي ، ببری مې پر تنکي مخ څومره سخت
سخت وواهه.ببری خوګرم نه و، څه يې کړي وای ؟ له ډيره خپګانه يې
ډوډۍ هم نه وه خوړلې .
پاڼه له جونګړې نه راووته مورته يې غږکړ:
ـ موري ببری خوپه کنډوهم واوښت ، په دې مازديګربه چيرته ځي ؟
هله لورې ! راويې ګرځوه، کلي خوډيرلرې دی ماخوستن به هم ونه
رسيږي ، خرابې لارې دي.
پاڼه دهوسۍ غوندې په يوه ترپ کنډوته ورسيده. ببري مړه مړه ګامونه
اخيستل. لکه چې کلي ته يې دتګ زړه نه کيده .پاڼه يې چې وليده ،
بيايې ګامونه يوڅه ګړندي کړل . پاڼه ورپسې ورسيده، په غيږ کې يې
ونيو، ښکل يې کړ، اوښکې يې ورپاکې کړې.
ـ پرې مې ږده، زه نه ځمه ،زه مورته نه ورځمه، دومره يې ووهلمه
،ماڅه کړي وای ؟
بيايې ستونی راډک شواو خبره نيمګړې ځنې پاتې شوه، پاڼې بياښکل
کړ:

ـ راځه مورمې درپسې ژاړي هغه ستا په وهلو ډېره پښېمانه ده. زه مې مور درپسې راولېږلم. راځه چې ورشو ، هغه په تا پسې ځورېږي ، چې ډېره وځورېږي تا هم بښه لیدلې ده ، چې پیریان پرې راځي . چې چیرته وغورځیده که سرېې مات شه او که لاس یې مات شه. ببري سلګۍ وهلې:

ــ نه ، نه زه نه ورځمه ، خدای دې یې په پیریانو مړه کړي ، زه نه ورځمه ، زه کلي ته ځمه.

پاڼې په ژړه غوني غږورته وویل :

ـ کلي ته چاته ځې ؟ په کلي کې مور څوک لرو ؟ دکلي نه خودا یو کال کیږي چې خلک غرونو ته راغلي دي ، په کلي خوجازونه ږمونه وروي ، تا به هم راته شهید کړي.

ببري ځان کشولو ، چې د پاڼې له لاسونو نه ځان خلاص کړي ؛ خو پاڼې لکه تیخوری ماشوم په غیږ کې راواخیست . ببري لتې غورځولې او دخورپر مخ یې نوکارې لګولې .

ـ پرې مې ږده زه نه ورځم ، زه نه ورځم .

**** **** ****

په غوجل کې ژیړ خوسی پروت و ، دخپل زوی غوندې یې زړه پرې وسو . دببرې مورنن ډېره سخته خواشینې وه. خپلې غریبۍ اوبې کسۍ تیروختونه ورياد کړل . هغه دببري پلارته ډېره ګرانه وه ، هغه وخت یې په یاد شو چې دببري له زیږیدو سره سم دغنمو لوونه ګډ شول . دببري له پلار سره به یې لوونه کول .

له څوورځو ،لو نه وروسته ناروغه شوه او په سینه کې یې شیدې هم وچې شوې. ماشوم به یې په کوڅو کې ګرځاوه ، کله به یوې ښځې یو غړپ تې ورکړ او کله بلې ښځې. ماشوم به تږوله شپه له لوږې نه په ژړا تیره کړه .

دببري پلار دبوسو او غنمو په پیسو غوا واخیسته. غوا تکه زیړه وه. ببری یې دغوا په شیدو رالوی کړ. زیړی تږولو ته ګرانه وه. زیړی

دومره اصیله وه، چې پانې هم لوشلی شوه . زیړی په ببري ډیره گرانه وه. خود به ورته گرانه وه، ببری دزیړی په شیدورالوی شوی و . کله کله خوبه یې دزیړی تی په خوله کې ونیواود خوسي غوندې به یې رودلو. ببري له زیړی سره خاصه مینه لرله ، له سهارنه تر مازدیگره به یې پرېو لوڅروله. له زیړی سره دټولو مینه ورځ په روغ زیاتیده.

هغه ورځ چې دببري د پلار مړی یې په وینوکې خیشت پیشت له سنگره راوړی و، ببري زیړی څرځای ته بیولې وه . دببري مور هغه ورځ ډیره سخته راغورځیدلې وه، له تندي نه یې وینې بهیدې ، دکلي ښځوویل چې پیریان یې دي.

کله چې ببري زیړی له څرځای نه راوسته ، دپلار دمړي په لیدویې کریکې کړې، زیړی هم لکه بنیادم غمجنه په ځای ودریده. داټولې صحنې دببري دمورپه ذهن کې راگرځیدې، نژدې وه ، چې بیا پیریان پرې راشي . دببري کټ ته ورغله ، ببری یې پرتندي ښکل کړ، کلیمې یې وویلې:

ــ خدایه باقي خیر کړې.

****　****　****

نورې ورځې به چې لمردجگ غره پر څوکه سرراښکاره کړ، نوموربه یې په ببري غږ وکړ:

ــ هله ببریه زویه پاخه صدقه دې شم ، لمر راختلی دی، بیا به زیړی ځنگل ته دڅرولوله پاره بیایې .

نن دلمرسترگه په شنه آسمان کې څونیزې جگه ولاړه وه، ببری په کټ کې اوږد غزیدلی و ،اوپه درانه خوب ویده و. هغه په شپه کې څوواره راویښ شوی و . ټوله شپه یې په اندیښنو تیره کړې وه . ویرووونکي خوبونه یې لیدل . خوب یې لیده ، چې یو برگ پړانگ وریسي ځغلي ،ببری منډې نه شي وهلی ، خوچې کله پړانگ ورته رانژدې شواودببري

مری‌ته یې منګولې ورو غزولې ، په دې وخت کې ببری له ډیره هیبته راوینښ شو ، په کټ کې کښیناست شونډو یې پټرې نیولې وو ، په کوچنۍ څیره یې پریشانۍ خوره وه . د نورو ورځو غوندې یې دغږکی د شاربلو اوازپه غوږنه شو . له حسرت نه په ډکو سترګو یې خپلې مورته وکتل ، موریې د چرګۍ پرغاړه خپه او دلګیره ناسته وه . بیا یې سترګې د مستو په کټوه ولګیدې . د کټوې پر سر برغولی نه و . کټوه وچه ککړه وه ، پر مورګوېې مچان ګرځیدل او په ګیډه کې یې کنډو کې کنډوکې مستې نه بریښیدې . تیرې شوې ورځې وریادې شوې . هرسهار به چې له خوبه پاڅیده ،موربه یې د مستو په کټوه کې سوکړک ورته میده کړی و ، او ببري به په خوند خوند خوړو ؛ خو نن د مستو کټوه تشه وه . ببري د مستو له کټوې ، لاسترګې نه وې اړولې ، چې په غوجل کې د ژیړ خوسي دردناکې او غمجنې رمباړې پورته شوې . ژیړ خوسی په موږې پورې کلک تړل شوی و ، پورته پورته یې ټوپونه وهل . په سترګو کې یې انتظار ځپې وهلې ، موریې غوښته د زیړی غواله شیدونه ډک تیونه یې غوښتل . ببری وبوړنیدو ، سترګې یې له اوښکو نه ډکې شوې ،برګ پړانګ یې په خیال کې ورغی . هغه پړانګ چې په خوب کې یې لیدلی و . هغه پړانګ چې د دوی خوشحالۍ یې داړلې وې .

۱۳۷۰-۲-۱۷

# تشه ځولی

نن دخوست په عسکري قشلوکې دسره بیرغ یوه ریتاړه هم نه وه پاتې. دسرو بیرغونو پرځای شنې سپینې او برګې جنډې رپیدې. عسکرو لاسونه دتسلیمۍ په نوم جګ نیولي وو. دمجاهدینو په سترګوکې دفتحې نخښې بریښیدې او په ډیرو یاړ دشوبلوپر سرونو ولاړوو.

نن دخوست واړه او زاړه خوشحاله وو. دتوریالي له کوچنۍ خیرې نه عجیبه خوشحالي وریده. چې چیرته به یې خپل همزولي ولیدل نوله لرې نه به یې چیغې کړې:

ـ ښه شوچې خوست آزاد شو ،ځومره خوند یې وکړ . اوس به دهیڅ شي قحطي هم نه وي . اوړه به هم ښه پریمانه وي، مالګه به ارزانه شي. ګوړه چای او خواړه به هم ارزان شي .

اوس به په اوړوکې دمالګې پرځای دبانجانو تروې اوبه نه ګډوو. دمالګې من به ددوو زرو افغانیو پرځای په دوه درې سوه افغانۍ وي،اوس به دغرونو ځخه دخیرې لرګي راځي او دخوست میوه دارې ونې به روغې پاتې شي. دنښترو غوټې به هم نه سوځوو. هو رښتیا اوس به د مجاهد ینو

توغوندي هم نه راځي او موږ به نه پرې وژني.

داخبرې د تورپالي سبق ګرځېدلی و. هر چا ته به يې په خنداخندا او په مينه مينه کولې. په منډه منډه کور ته لاړې چې خپله مور، پلار او خويندې دخوست له آزادۍ نه خبر کړي. په هغوی هم زيری وکړي. د آزادۍ زيری، دقحطۍ دله منځه تللو زيری، د توغوندیونه دخلاصون زيری اودهرشي دارزانۍ زيری. دکوردروازې ته نژدې شو. له تورپالي سره دآزادۍ دزيري تلوسه وه. ناڅاپه يې دميګ جازونوبوږنوونکی غږ واوريد. دمونو غړمباشوه، دخوست په عسکري قشلوکې دسکډ توغندي لکه تورد يوان ولګيدل. دسکډيو تو غندی ددوی په کورولګيده، دکورځيره په يوه لويه کنده بدله شوه.

*** *** ***

دمجاهدينود توغندي آوازپه هواکې خپورشو. د تو غندي د لګيدوسره سم درب شو چې تورپالي له کټه راولويده، خويندويې په کړس کړس ورپورې وخندل:

ـ ښه تورپاليه زموږ په ناروخونه پاڅيدې د توغندي له ډاره له کټه هم راولويدې.

مورخپلې لوڼې ملامتې کړې:

ـ مه ورپورې خاندئ په توغنديو کې خوڅه تو کې نه شته.

پلارېې هم راببرشو:

ـ هغه پرونۍ پيښه مو هيره شوه، خدای موځوانيمرګې کړه.

تورپالی په انديښنوکې داسې ډوب و، چې دخويندواو مور اوپلارپه خبرويې ځان هم ونه پوهاوه. دنغري پر سرتورچای جوش ايښی و. په نغري کې دنښتروغوټې بليدې، غوټې په وينوسرې وې. په وينوسروغوټو سرې لمبې کولې. دنغري په څنګ کې يوه ځولۍ په وينوسرې غوټې پرتې وې. د تورپالي مورچای او ډوډۍ تيار کړل. کله

چې توريالي د تودې ډوډۍ گوله خولې ته کړه او د چاى يو غوړپ يې وکړ، سترگې يې د نغري په څنګ کې يوې څولۍ په وينوسرو غوټيو ته واوښتې. څمکه وربانديې وچورليده. زړه يې راډک شو. توريالي ته خپل ځان سرې خوړوبرېښېده. داسې لکه چې د بختورله غوښواو وينو يې خوله ډکه کړې وي. ژرېې له خولې نه د ډوډۍ گوله او د چاى غوړپ توى کړل. په مخ يې غبرگې غبرگې اوښکې راغلې. اوښکې يې پټې پاکې کړې چې د مواو پلاريې ور پام نه شي.

توريالى بيگانې خوب او پرونۍ غمجنې پېښې سخت ځوراوه. د توريالي ښايستوکي فکرونه او خيالونه غمونو گډوډ کړي وو، داسې لکه چې بمونه او توغندي کلي او کورونه سره گډوډ کړي. د کوچنيتوب رنگينه د نياگۍ يې غمجنو پېښولوټلې وه. د شونډولـه تنکيو غوټيونه يې خنداشوکيدلې وه. د کوچنيتوب شوخي ځينې هېره شوې وه او د وخت د غميزو په باب يې د لويانو غوندې فکر کاوه. خود هغه فکرپه دومره پيچلواو غمجنو پېښو کي کله رسيده. د توريالي په کړووړو کې د پام وړبدلون راغلى و. په ځيره کې يې له ورايه د غم نخښې معلوميدې. د شپوور ځوله تيريدو سره د توريالي كنجكاوۍ او انديښنې زياتيدې.

د خوست د ښارپر عسكري ځايونو د مجاهيدينو توغندي همداسې وريدل. كله كله خو به داتو غندي د بازارپه منځ او عسكري ځايونو ته نژدې كورونو كې هم ولگيدل. د حكومت الوتكو، شوبلو د مجاهدينو پر مركزونو او د مركزونو سره پر نژدې كليو بمونه غورځول. دلته او هلته د جنازوخبرې وې او د ويرونو ساندې.

د توريالي له ځيرې نه خوشحالي تښتيدلې وه. پخوا به يې په كوركې ډيرې خبرې كولې خواوس يې له خولې نه سپين هم نه خاته. دا ځوورځې د نښتر و د غوټيو په تولولوپسې هم نه و، وتلى. د نغري په څنگ كې د غوټيوځولۍ تشيدوته نژدې وه، ايله يو ځو په وينو سرې

غوتې پکې پاتې وې. هرې غوتې د خپل خواږه ملګري «بختور» د خاطرا تو غوټې، ورته سپړلې. موراو پلاريې د توريالي په غمجن حالت ډېر ځوريدل. موربه يې ويل:

ـ هسې نه چې په بختورپسې يې زړه وچوي بختورخو توريالي ته له ورورنه هم خوږو، سودايي شوی دی، چې ليونی نه شي خدايه ژربه يې سپيلني ورته لوګی کړل. د توريالي په غاړه يې د تاويزونو اميل جوړ کړ، خود توريالي پريشانۍ ته يې هيڅ ګټه ونه رسوله.

توريالي ته غمجنو پيښوله ژوندنه يوه سخته کشاله جوړه کړې وه .داسې کړکيچنه کشاله چې د حل په لاره چاره يې نه پوهيده.

ـ خدايه مورمې هره ورځ د تيروشوو اخترونو کيسې راته کوي، خو زه چې له موره پيدا يم يومې هم د خوشحالۍ اخترونه ليد. اوس ولې اخترونه نه شته دا غلې ولې ګرانې دي ، دادچای ګوړې اومالګې ولې قحطي ده او داجازونه ،شوبلې ځومره ډيردي توغوندي ځومره ډيردي اوداوينې .... .

زړه به يې وبوږنيده اود بختوروينې به يې په خيال کې ورغلې . دنغري په څنګ کې دغوټو ځولۍ تشه وه. دبختورپه وينو سرو غوټو د توريالي نغری ځوورځې تود ساتلی و. توريالی بيا دغوټود ټولولوپه نيت له کوره راووت، دنښترو هغه ځنګل ته چې دښارلمنه يې ښکلې کړې وه راغی. ددې ځنګل غوټوبه تل د توريالي او بختورساړه نغري تاوده ساتل .

دنښتروزلفې د توغنديو او سپنيزو پنجوشوکولې وې . دنښترو له غوټو ډکې تنکۍ څانګې لرې لرې پرتې وې . توريالي له ماتو تنکيو څانګونه غوټې شوکولې . ناڅاپه توغوندي راغلل. دنښتروله ځنګل نه يو څه لرې ولګيدل. توريالی په بيړه دغوټوډکې تنکۍ څانګې ته ورغی ،داسې لکه چې دبختورغيږوي اوغوټې يې دبختوردزړه په وينوسرې وې . توريالي دماتې څانګې غوټې ژرژروشوکولې، خپلې ځولۍ ته يې واچولې، منډه يې کړه او ژوبله څانګه يې تشه پرښوده ،داسې لکه دبختورتشه ځولۍ اوټوک ټوک بدن يې د توغنديو داورلاندې پريښی و.

۱۳۶۹/۱۰/۱۳

د ټنيوغرونه

# زنځیرونه

دپښخواني عادت په څیرېږ بیاهم دریمې کوټې ته سترګې وروارولې.
دکوټې دروازه په تورزنځیرتړل شوې وه. تور زنځیر د ګل اندامې زړه ته لکه تور مارتېک ورکړاودبندي کوټې خیالي تصویر یې دهغې په مغزوکې رنګ کړ. په شونډو کې یې څه وویل، خوانښې یې بیا ورنازې کړې:

ــ ګل اندامې !وه ګل اندامې ! وه خدایه کنه هم شوه.

دریم ځل یې په زوره ورغږ کړ:

ــ وه ګل اندامې !

ګل اندمې ټکان وخوړ:

ــ درغلم ادې انګړمې جاروکاوه.

ــ ګل اندامې لورې ! په دې بخارۍ پسې اورواچوه دباتورد پلار ډیره یخني کیږي، نن سباډیرکمزوری شوی دی. بیګاه شپه یې ټوله وینښه تیره کړه. نۀ پوهیږم چې یخني یې کیږي که له اندیښنو نه خوب نه ورځي.

د دروازې غرب شو. توتي کوټې ته رانـنووت، دسبو ټوکرۍ یې ګل

اندامي ته ورکړه:

ـ ښکلې کاکې داواخله پاخه یې کړه، بابامې ویل چې ښه خوا ږه دې یې پاخه کړي میلمانه ورسره رائحي.

ـ ښه وروركه! ښه خواږه به یې پاخه کړم. اول به دمیلمنو کوټه جاروکړم بیابه سابه هم پاخه کړم.

گل اندامه دمیلمنو کوټې ته لاړه. دتوتي مورتوتې ته په قهرشوه:

ـ څوواره مې درته ویلي دي چې ښکلې کاکې یې مه بوله اوس خو کوچنۍ نه یې په نن سباکې به ژنې شې دومره نه پوهیږې؟ گل اندامه هم ځان ناگاره اچوي غټه ښځه ده اوس هم وروک درته وايي. له نن نه وروسته دې که ښکلې کاکې وبلله بیابه ... .

په توتي کې یې سترگې ښخې کړې. په سترگوکې یې دغم او غوسې نښې رابرسیره شوې. یوه شیبه غلې شوه او لنډه لنډه سا یې واخیسته، بیا یې په قهرجنه لهجه ورته وویل:

ـ نه پوهیږم چې دا ته ولې نه پوهیږې، اوس خو ماشوم نه یې.

توتي چې دمورغمجني او قهرجنې څیرې ته وکتل حیران شو. د موږپه خبرویې سر نه شو خلاص:

ـ وی خدایه داڅه دربانديې وشول لیونۍ کیږې خوبه نه؟ ولې تا نه ووراته ویلي چې ښکلې کاکې یې بوله، دلاله ناوې دې ده، ورینداره دې ده. اوس ولې راته وایې چې په نامه یې بوله، له تاسره خوجنگ نه کوي څه ... .

مورته یې دتوتي په ساده گۍ قهرورغی او په تونده لهجه یې ورته وویل :

ـ ته نه شرمیږې چې اوس یې هم ښکلې کاکې بولې، گل اندامه خواوس ستاپه نوم ده، داخبره دتوتي پر زړه لکه خنجرولگیده. زړه یې راډک شو ژړا ورغله په منډه له کوره و، ووت. دهدیرې په قبرونو

ورګډشوا و دیو قبر د پاسه پرمخې پریووت.

ګل اندامې دخوابښې او توتي خبرې تکي په تکي اوریدلې وې. دمیلمنو د کوټې پر دیوال دباتور عکس ځړیده. ګل اندامې دباتور عکس ته سترګې ورواړولې. دباتور له عکس نه غمجنه موسکا وریده. په سترګويې اوښکې راغلې. نرۍ شونډې يې لکه د ګل پاڼې ورپیدې لکه له خپلې خوابښې نه چې دباتور عکس ته ګیله کوي. دباتور سترګې همغسې موسکې وې او په تنده يې ګونځې رانه غلې. دمیلمنو له کوټې راووته او ددریمې کوټې سرته وخته. دمهاجرو کورونه لکه د زنځنیر کړۍ سره نښتي وو. دمهاجروهدیره په رنګارنګ جنډو کې پټه وه. دجنډو لاندې قبرونه هم لکه دزنځیر کړۍ سره نښتي وو. په ځینوجنډو کې ګلونه او دشهیدانو نومونه په وریښمینو تارونو اوبدل شوي وو. دګل اندامې په بیکرار زړګي عجیبه چل وشو. منګولې يې لپه کړې هدیرې ته يې وکتل. له دریمې کوټې نه دوهمې او له دوهمې کوټې نه دمیلمنو دکوټې سرته راغله. ددریمې کوټې دبندې دروازې له زنځیرنه يې سترګې بلې خواته واړولې. ګل اندامې ته دجنډو ګلونو اود شهیدانو نومونو عجیبه سودا ورواچوله. دسبو دپخولو په ځنګ کې يې پر سپین ټوکر وریښمین تارونه لکه زنځیرونه وغځول.

ګل اندامې به اوس هر ورځ پر سپینو ټوکرانو وریښمین ګلونه جوړول، سږکال په دریمه کوټه کې نه اوده کیده. دریمه کوټه به ټوله شپه په چوپتیا او تیاره کې ډوبه وه. سږکال په ژمي کې دوی ټول په دوهمه کوټه کې اوده کیدل. ګل اندامې ته په دوهمه کوټه کې هیڅ خوب نه ورتلو. کله به چې دنیمې شپې باد د دریمې کوټې زنځیرو شرنګاوه د ګل اندامې په زړه به د غمونو مارانو خولې ښخې کړې، لکه چې کټ يې په مارانو اوبدل شوی وي. ګل اندامې په تیریو کال کې ایله دوې

شپې په دوهمه کوټه کې تيرې کړې وې . هغه يې هم له ډيرې خوشحالۍ نه په ويښه تيرې کړې وې. دناوې توب شپې يې وې ،په دوهمه کوټه کې دوې شپې او دباتورخاطرې يې په ذهن را ووريدې.

پيغلې اوپيغلوټې سندرې وايي دايرې وهي او اتنونه کوي. ځينې پيغلې له گل اندامې نه چا پيره کيناستې .يوې پيغلې دگل اندامې له مخ نه دټکري پيڅکه پورته کړه په خنداکې يې پوښتنه ځينې وکړه:

ــ خورې نوم دې څه دی؟

گل اندامه موسکه شوه او هيڅ يې و نه وې.

يوې وويل:

ــ گل اندامه نوميږي.

يوې بلې داهم پسې زياته کړه:

ــ گل اندامه نه ،گل اندامه ښا پيرۍ.

ټولوپيغلو په بړک بړک وخندل.

يوې زړې ښځې وويل:

ــ زموږباتور هم بهرام شهزداه دی.

بلې داخبره ورپسې غبرگه کړه:

ــ مبارکه دې شي داخوډيره ښکلې جوړۍ شوه.

يوې پيغلوټې دگل اندامې لونگينو ځوندېوته غلی لاس وروغځاوه غوښتل يې چې ويې شوکوي . گل اندامې يې لاس تينگ ونيو. پيغلوټې په خنداکې ورته وويل :

ــ وی گل اندامې خورې ځومره بخيله يې لکه چې دباتورد کلاشينکوف له پاره ځوندې ساتې .ټولې پيغلې اوپيغلوټې له خندانه شنې شوې.

دوې شپې لکه يوځوشيبې دسترگو په رپ کې تيرې شوې . په دريمه شپه گل اندامې ته ددريمې کوټې واک ورکړل شو. گل اندامې په

لړزاندو لاسونو د دريمې کوټې زنځير خلاص کړ. د زنځير له شرنګ سره د ګل اندامې د بنګړو شرنګا ګډه شوه او د لونګو له وړموسره د ريمې کوټې ته ننوته. ځان ځينې ورک و. زړه يې په تېټرکې ټوپونه وهل، د کوټې ځراغ يې ولګاوه. پرمخامخ ديوال د باتور عکس راځوړندو. عکس ته يې په مينه وکتل. اننګي يې له شرمه سره شول ژرېې د دروازې خواته مخ واړوه چې چا خوبه ليدلې نه وي. دروازه يې بنده کړه. د کوټې په کنج کې د باتور کلاشينکوف راځوړند و. د کلاشينکوف د ساده بند په ليدويې په زړه کې وويل:

— دابه په مريو او ځونډيوکې داسې پټوم چې خلک يې ننداره کوي. دريمه شپه هم تيره شوه. ډيرې خوږې شپې يوه په بله پسې تيريدې. کله به چې باتور د جهاد سنګرونو ته تللی و ګل اندامه به په دريمه کوټه کې يوازې پاتې وه. ګل اندامې به تر نيمو شپو د باتور کمربند او کلاشينکوف ته ځونډې جوړول او په دې ډول به يې د باتور د بيلتانه شپې لنډولې.

يوه شپه د باتور دوی پر سنګرونو د حکومت له خوا سخته حمله شوې وه. د بمونو او توپونو اوازد مهاجرو کلي ته رارسيده. ګل اندامه ترنيمو شپو د کوټې پر سرناسته وه. کله به چې د وطن د غرونو پر سر د بمونو بريښنا خوره شو ه د ګل اندامې له خولې نه به بې اختياره ووتل:

— خدايه خير کړې باتور ته خير کړې. پټ به يې په زړه کې ډيرنذرونه ومنل.

د ګل اندامې ليونې خيالونه به چې تردې ځايه راورسيدل نوربه هيڅ هم نه ووپاتې او د دريمې کوټې په ځيربه د ګل اندامې سپينو مړوندونو ته زنځيرونه اچول شوي وو.

تنې د نريزې کلی

۱۱-۱۲-۱۹۹۱

# دسپین شیطان په غیږ کې

دایې پوخ عادت گرځیدلی و، له هر لمانځه وروسته یې راواخیست ،ښکلولو به یې، دعاوې یې ورته کولې، ورته ژړل یې:

ــ خدای دې تلې تودې کړه، خدای دې راوله.

بیایې دزوی په ښکلې عکس کې سترگې گنډلې وې. له سترگونه یې لکه دپسرلي باران مرې مرې اوښکې رابهیدې. غوښتل یې چې څه ووایي خو سلگۍ دهغې خبره غوټه کړه. سپوږمۍ تسله ورکوله:

ــ ادې مه ژاړه خدای مهربان دی گوندې خدای یې راولي.

سپوږمۍ هم د خپل مین عکس ته سترگې وروا ړولې. دزلمي په سترگو کې د ځوانۍ غرور ځلیده. سپوږمۍ ته تیرد مینې وختونه وریاد شول. پرخپل زړه یې زور راوړچې ونه ژاړي خوله سترگو نه یې داوښکو چینه روانه شوه. دزلمي مور په سلگو سلگو کې داخبره وکړه:

ــ پلاریې په زلمي پسې رنځورشو..... په ځنکدن کې یې هم زلمي یادولو..... دزلمي په ارمان لاړ.

گلالۍ په خنداخندا کورته راغله. په ډیرې خوښۍ یې نارې کړې:

ــ زړې ادې وه زړې ادې تاته وايم داغبرولې نه کوې ؟ دباغ نه مې منې درته راوړې دي .بادونو راتويې کړې وې.
نيا گلالۍ تېنگه په سينه پورې ونيوه پر سترگويې ښکل کړه . ادې دې جارشي په دې وړوکې خولگۍ دزلمي غوندې سترگې دې دي . ته خو زماد زلمي نخښه يې ، دعاکوه چې زلمی دادادې خدای راولي ،دکوچنيانو دعاخدای قبلوي . که زلمي رانه غلوځمکې او باغونه به تربورانو ته پاتې شي تاسې به هم ورته پاتې شئ . په زوره يې نارې کړې:
ــ په زلمي پسې مې سترگې وختې خدايه !
گلالۍ مې پنځه کلنه شوه که زلمی ژاړند ژوندی ورک نه وای اوس به خدای ډېر لمسيان راکړی وو. گلالۍ خپلې وړې منگولې لپه کړې اود خدای دربارته يې ونيوې ،په وړه خوله يې دعاوکړه:
ــ خدايه ! دادمې ژرراولې زړه ادې مې ورپسې ژاړي .نيااو سپوږمۍ ، امين وويل او دوی هم دگلالۍ دعا په خپلو لپوشوو لاسونو بدرگه کړه.

* * *

زلمی خپل موراو پلارډېرپه نازلوی کړی و، دهغه به چې څه زړه غوښتل موراو پلاورته نه ، نه وو کړي . دځمکې کاروباريې ټول دپلار پر غاړه و، دلو په وخت کې به يې موراو پلارلوونه کول . زلمي به چې يو ځوگيډۍ وريبلې نولوربه يې لرې وغورځولو، وبه يې خندل:
ــ ادې زمالاسونه تنباکې شول ، زه لو نه شم کولی . کراربه پر پوله کيناست . پلاريې هم نه غوښتل چې دزوی تنکي لاسونه دې يې تنباکې شي . دټوکې په ډول به يې ورته وويل :
ــ بچيه ! ته کراراته کښينه زموږ ننداره کوه . موردې چې په څنگ کې راسره وي دټولې دنيالوونه ماته پرېږده. ټولوبه په کړس کړس وخندل. زلمی لاد يارلس کلن هلک وچې جيب به يې له پيسونه ډک و.

یوځوکاله یې مکتب وویلو ، له مکتب نه یې زړه تورشو ، مکتب یې پرېښود . دځوانۍ په مستۍ کې ډوب و ،خدای ښکلې ځواني او فولادي وجود ورکړی و . په کلي کې یې دزورمخی نه و ، چاورسره غیږه نه شوه نیولی . دنورو کلوډیرقوي ځوانان یې هم مات کړي وو . دزلمی نوم لکه دنکلونو قهرمان دخلکو په ژبه و . زلمی دکلي دډیروجینکوخوښیده . دزلمي مینه له غیږې نیولوسره وه . هغه به چې کوم قوی ځوان دپهلوانۍ په میدان کې مات کړنو ځان به ورته پاچاښکاریده .نن یې بیاد غیږې نیولو میدان ګټلی و ځان ځیني ورک و ، ځمکه او اسمان یې نه لیدل . دکلي په کوڅه کې روان و ، چې منګي پر سر ډله جینکۍ پر مخ ورغلې ،دجینکو په منځ کې سپوږمۍ هم وه . دکلي بې جوړې ښکلې پیغلې سپوږمۍ چې زلمی ولید نو په څه بانه یې ځان دټولوجینکوشا ته کړ . دزلمي هم ورپام شو ، کله چې زلمی او سپوږمۍ په مخه سره ورغلل نو سپوږمۍ خپلې خوږې سترګې په ډیرې عاجزۍ ورواړولی ، لکه سوالګرچې له چانه دخیرات سوال کوي ، سپوږمۍ له زلمی نه غوښتنه لرله . دسپوږمۍ په خوږو سترګوکې عجیبه تاثیروو . دزلمي په وجود زلزله ګډه شوه . لکه دغیږې نیولو په میدان کې کوم قوي پهلوان راځملولی وي . پښې یې په لړزاشوې ،چې څوک به په لاره ورغلل او خبری به یې ورسره وکړې په خبرو کې به یې هم ژبه بنده شوه . زلمي له ځانه سره وویل :

ـــ داسپوږمۍ بیخي لکه جادوګره داسې ده . هغه بله ورځ چې زه پر لاره روان وم دادبام پر سرناسته وه سترګې یې په ماکې ګنډلې وې ،لاس یې هم ترزنې لاندې نیولی وچې څه وروریې مړدی ؟!

ورو ،ورو زلمی دغرور له نیلی نه را کوزیده . اوس له چا سره په غیږ نیولو پسې هم ډیر نه ګرځیده . اوس یې زړه غوښتل چې همیشه یې سترګې دسپوږمۍ له سترګوسره غیږ ونیسي . ددنیاګۍ کارته یې

گوتې نه وروړې . کوږ خلی یې هم نه سماوه . تر نیمو شپو به دکلي په دکانو او حجرو کې ورک و . کله کله خو به یې دچرسو پر چیلم هم شونډې کېښوې . مور به یې تر هغو ویښه ناسته وه چې څو به زلمی کورته نه و، ورغلی . چې دڅه شي ښکالو به ورغله په ډېره مینه به یې غږ وکړ :

ـ زلمیه زویه! وه زلمیه زویه راغلې!

چې زلمی به غږ و نه کړنو موربه یې بیا ویښه کیناسته .

یوه شپه چې خلک په خوږ وخوبو ویده وو ، دزلمي مورد زلمي په انتظار ویښه ناسته وه . دسپوږمۍ پاشوه :

ـ « فضل وکړې خدایه ! سپي به زلمی وخوري »

دزلمی مورلا په دې سوچ کې وه چې دټوپک له ډزو سره سم دسپوویشتلې انګولا پورته شوه . دمور په زړه کې یې سوې لیکه تیره شوه . ناري یې وکړې :

ـ زلمیه چاووژلې ؟!

دباندې کوڅې ته راووته . پلاریې هم راویښ شواو په ډېرې وارخطایۍ کوڅې ته راووت :

ـ څه خبره ده ؟

دزلمي مور په وارخطایۍ سره ورته وویل :

ـ زلمی نه دی راغلی ،هلته ډزې وشوې هسې نه چې ...

دوی لاداخبرې کولې چې زلمی ټوپک په لاس راورسیده . دټوپک له شپیلۍ نه د باروتو سوی بوی ختو . دوی واړه کورته ننوتل . دمورزړه یې اوس هم لکه پاڼه رپیده . پلاریې ورته وویل :

ـ ګوره زلمیه ! اوس خو کوچنی نه یې سم کارو نه کوه . مکتب دی هم پر ېښود ،د ځمکې په کار وبارهم نه پوهیږې ،اخرزده کوه یې، موږخو سپین ږیري یو ،خدای خبر دی نن به یو سبا به نه یو . سبا به دا هر څه تاته پاتې وي ، په یوه به هم نه پوهیږې .ټول خلک ستا دزوراو ځوانی

صفتونه کوي ، خو موږ ستا په ځوانۍ کې هیڅ هم و نه لیدل . خلک خو او لاد د کومک له پاره غواړي . ستا به کله موږ ته کومک را رسیږي . د شپې وختي کور ته راځه ، موږدې ټول شپه ویښه وي . ازار به درته وکړي . که په خوله یې نه درته کوي زړه به یې ازار درته وکړي . ډیر په خپل زور مه غره کیږه . شپوچې خوړلي دې دهغوی پته هم نه ده لګیدلې پلار یې لاخبرې نه وې خلاصې کړې چې مور یې په کې ورولویده :

ــ دزلمي پلاره ډیره یې مه خپه کوه . زلمی اوس نوی زلمی دی چې واده ورته وکړو ښه به شي .

په دې خبره یې د پلار قهر سوړ شو یې خندل :

ــ زه خو وایم چې خپله ښځه اواولادونه به هم و نه ساتي . نه یې تعلیم وکړاو نه دځمکې په کاروبار پوهیږي. مور یې وویل :

ــ څنګه به ښځه او اولادونه و نه ساتي چې چیر ته قوي ځوان دی دزلمي دزور مخه نه ویني.

پلار یې وویل :

ــ ښه دی چې داسې ده بیا خو به ورته دواده غم وکړو.

* * *

نیمه شپه ده زلمی په کټ کې اوږد وغځیده . کټ وربانددی تاویده ، لکه ټال ټالی یې وهلې . داسمان ستوروې سترګې بریښولې ،لکه سترګکونه چې ورته کوي . له یوې سپوږمۍ نه درې څلور سپوږمۍ ورته جوړې شوې .خپله سپوږمۍ هم په خیال کې ورغله .هغه سپوږمۍ چې په ټول کلي کې یې د ښکلا جوړه نه وه . له ځانه سره یې وویل :

ــ پلار مې دواده غم را ته کوي .

له خندانه شین شو ، ږوند له خدایه څه غواړي دوې سترګې.

* * *

وخت تیرید واو بیا هغه ورځ هم راغله چې زلمي په زیارتونو له خدایه

غوښته .
دزلمي موراو پلار عجيبه خوشحاله وو ،داسې خوشحالي هغوی په خپل عمرکې هم نه وه ليدلې . ولې به نه ووخوشحاله . ديوزوی واده يې وو . بياد سپوږمۍ غوندې نږور . د کلي ښځو به دزلمي مورته ويل:
ــ ته هم بختوره يې سپوږمۍ خو چې دچا په کورکې وي دلولوردې يې هم نه وي .
زلمي دسپوږمۍ مينې يوځه له بې ځايه هوسونو نه وساته . دايوکال خو دسپوږمۍ په مينه او دهغې په خوږو خبرو نه مړيده . موراو پلاريې هم ورته خوشحاله وو ، بياداسې ورځ هم راغله چې دوی ټولو ديوه نوي ميلمه دراتګ لاره څارله . پلاريې ويلې وو :
ــ که خدای لمسی راکړونو دقلبې په غوايي به خيرات کوم . د زلمي مورهم داسې ډيرنذرونه منلي وو ، خو هغه دچاخبرده چې « دزړه چارې په جنت کې وي » دزلمي دزوی پرځای لورپيداشوه. دزلمي موراو پلارهم ډيرناامېده نه و. دزلمي مورته دکلي ښځوويل چې لومړۍ لوربختوره وي ،په دې پسې به خدای ډيرلمسيان درکړي . دزلمي موربه چې خپله لمسۍ په غيږکې واخيسته په خندااو خوشحالۍ به يې ورته وويل :
ــ سترګې دې له زلمي نه پټې کړې دي .
له يو کال نه هم ډيره موده کيده چې زلمي دشپې له خوادنشه يانو په محفلونو کې برخه نه وه اخيستې . کله کله به يې چيرته پټ يو نيم دچرسو سګريټي وڅښلو . دورځې به چې چرسيانو وليدو نو ټوکې به يې ورپورې کولې او ورته ويل به يې :
ــ زلميه ! اوس خو دشپې له خوادکانو نو ته هم نه راځې ، لکه چې لور ورته زنګوې .
کوم يوه خو به دچرسو سګريټي ورته ونيواو ورته وبه يې ويل :
ــ نورې خبرې پرېږده خو يودم ونيسه ، فقيربوټي دی بنده بيږۍ به

دې خداې چالان کړي .
زلمي به هم په ډېره مينه له سګرېټې نه شنه لوګي پورته کړل.
دچرسولوګي دزلمي زړه ورو ورو دسپوږمۍ له سترګونه ځلاصاوه او په خپله غېږکې يې نيوه . زلمي بيا د شپو له خوا دکانو نو او دنشه يانو محفلونو ته راشه درشه پيل کړه . عجيبه چيلم کښې و ، په يوه ساه به يې دچيلم له سرخانې نه لمبې جګې کړې . زلمی اوس دپاخه پهلوان پرځای په پاخه چرسي مشهورشو. د چرسوپه جوړولواو پخولوکې يې خاص لاس درلود . چې کله به يې دچيلم سرخانې ته تيلی ولګاو ه نو له شوقه به يې نارې ورسره پورته کړې:
ــ چې بنګ يې نه وې ننګ يې نه وي . چې چرس يې نه وي ترس يې نه وي . بري جارشم له فقيربوټي پاچايې کړم . ملک چې مړشي لکه له ديوال نه چې ځپياکه راپرېوزي او چرسي چې مړشي لکه لوی غرچې ړنګ شي .
بيايې دچيلم له سره لمبې پورته کړې ،دوامدار ټوخي يې وکړل ، له سترګونه يې اوښکې روانې شوې او ټټرې له خراشکونه نه تشيده . چې کله به يې ښه ډيرخراشکې واچول نو په نيولې ساه به يې وويل :
ــ ټټر صفا کوي ټټر ، فقير بوټی دی فقير . . . .
دزلمي سوراوسپين رنګ توراوښتی و ، لکه دچرسولوګی ، سترګې يې تکې سرې وې لکه له وينو نه چې ډکې وي . چې چابه وليد نو وبه يې ويل :
ــ دامست ومست ، خپله هستي يې و نه زغمله او پر خپله ځوانۍ مغرورو.
زلمی چرسو بيخي بدل کړی و. په رنګ ، کړو ،وړو ، خبروهر څه کې يې فر ق راغلی و. چې په کومه خبره به دې اخته کړنو ښه په زوراو زېربه يې درته کوله . له سپوږمۍ سره دخپلې ميني کيسې او نورې ډيرې پټې

بربنډې کيسې ، په يوه به يې هم پرده نه اچوله .

يوه ورځ دخپل چيلم له ملګري سره له خپل کلي نه لرې ښار ته لاړ .

زلمي ورته وويل :

ـ هلکه راځه چې چرس خانې ته لاړشو ډير سخت خماريم او چرس هم دغوايي دژبې په اندازه چې نه وي په لږومې ګوزاره نه شي .

ملګري يې په خنداخنداورته وويل :

ـ هلکه نه دې ده خوښه چې نن دتورو پرځای سپين ووهو .

زلمي ورته وويل :

ـ هلکه په سپينودې نه پوهيږم خبرې دتورو لونګينو چرسو کوه فقيربوتي دی فقير .

ـ ياره که سپين دې ووهل نو مارغه به درنه جوړکړي او اووم اسمان ته به دې وخيژوي . اخردواړه زنګيدلي زنګيدلي پوډرخانې ته ننوتل . تک سپين پوډريې دژيړطلايي کاغذ پر سرواچول . له نو ټونو نه يې نري نري نلکي جوړکړل او په خولو کې يې ونيول . دژيړطلايي کاغذلاندې يې بل تيلي ونيول . تک سپين پوډردتيلي له تاوه ويلي شول . دژيړطلايي کاغذپرمخ داسې وبهيدل لکه دپوډري پر تک ژيړمخ چې اوښکې روانې شي . دويلي شوو پوډرونري لوګي يې په نريونلکيوکې زړونو ته تيرکړل . له دوی نه ډيرکمزوري او تش جيبې پوډريان چاپيره کښيناستل . هر يوه به زاری ورته کولې:

ـ ځوانه يو کش به زه هم وکړم .

له زلمي نه سپينو پوډرومارغه جوړکړی و. په هواکې ګرځيده .سپينوپوډروداسې په غيږکې نيولی و ، چې نوريې هر څه ځينې هيرکړي وو. اوس به هر وخت پوډرو له زلمي نه مارغه جوړولواو په هوابه يې ګرځولو. وړو ،ورويې کور ، موراو پلارهيريدل . کوچنۍ ګلالۍ هم نه وريادېده . اوس کلي ته نه شو تلای هغه اوس سپوږمۍ ته هم سترګې نه

شوی نیوای . دزلمي جیب تش شو . زړه یې هم تش شو ، دژوند له میني نه . دسپوږمۍ له میني نه او . . . . . . پوډر دهغه دوجود یوه برخه وګرځیدل . هغه ته به چې پوډر ونه رسیدل نو وجود به یې ړنګ و . د پوستکي لاندې به یې میږي ګرځیدل . پر خپلو تیرونو کانو به یې دومره ځان وګرولو چې له پوستکي به یې ویني وبهیدې . دهغه وینې هم زیږبخونې وې ، لکه دد ه رنګ ، لکه د پوډرود کشولو ژیړه پاڼه .

*   *   *

خپل خپلوان په زلمي پسې ډیرو ګرځیدل . خوزلمی یې پیدا نه کړ . څنګه یې پیداکړی وای ؟! ښارونه له پوډریانو نه ډک وو . ټول زیږزبیښلي لکه ټول د یوې رنځورې مورزامن . زلمی به ډیرو خپلوانو دوستانو لیدلای وي خود پهلوان زلمي او پوډري زلمي ترمنځ دځمکې او آسمان غوندې فرق و . زلمي به ډیرو خلکو ته دسوال لاس نیوه . چابه چې دزلمي تک ژیږزبیښلی مخ او نتلی سپینې سترګې ولیدې نو ځواب به یې داو :

ـــ ځه ورک شې پوډري .

کله کله به دجومات په دروازه کې دلمونځ کوونکو څپلیوته غلی و . چې خلک به په لمونځونوودریدل نو غوټه به یې پرې وکړه . یوه پوړی پوډر به یې پرې واخیستل . دهلکانو له ډاره به دښار په څنګ کې کومې کندې ته ورته لاړشو او دکندې له غیږې نه به یې دسپینوپوډروپه غیږکې ځان هواته وخیژاوه . یو ه ورځ دبازار په منځ کې یوه دکاندار ناڅاپه چیغې کړې :

ـــ داپوډري رانیسئ غلايې وکړه .

پوډري وړو وړو هلکانو راونیواو سخت سخت یې وواهه . هغه به ایله خپل مخ ته دواړه لاسونه ونیول . ژړل یې له مخ نه یې ژیږبخونه وینه بهیده .

*  *  *

داڅوورځې هغه نه په ښار کې معلومېده او نه دجومات د څپليو ترڅنګ . دښار د څنګ په يوه لويه کنده کې يوسپی غلی غلی ګرځيده او شاوخواته يې مخ اړولو . دکندې په غيږ کې يو څوک پروت و . څنګ ته يې د پوډر رود کشولو ژيړ کاغذ او دا ورلګيت ښه ډير سوي تيلي پراته وو . سپی پر اته سري ته ورو ورو ورنږدې شو . سپی هم ډاريده هسې نه چې پسې راويښ شي . سپي خپله توده ژبه دهغه پر ژيړ ،وچ او يخ مخ ورو ورو را تيره کړه ، هغه نه راو يښيده لکه چې ښه اوږده خوب وړی و .

۱۳۷۰ پېښور

# تنکۍ څانګه

ښاپیرۍ شیبه په شیبه د ګل پوښتنې ته راتله . له ډیرې اوږدې مینې وروسته د دوی دواړو کوژدن شوې وه. ښاپیرۍ اوس هم د ګل پوښتنې ته راغلې وه او د ګلدان په خواکې ولاړه وه. هغې به هر وخت اول د ګلدان زیارت کاوه . په ژورو سوچونو کې ډوبه وه . په ګلدان کې مرغیجنو ګلونو د یوه ښه پاسته باران انتظار کاوه. ښاپیرۍ دا څوور ځې مخکې د ګل تنکۍ څانګه په ګلدان کې د راشنه کیدوله پاره ښخه کړې وه .هغې په آسمان کې خورې ورې وریځې ولیدې پر څیره یې له امیده ډکه موسکا وغزیده ، او له ځان سره یې وویل :

ــ ګوندې زما څانګه هم راشنه شي او غیږ یې له ګلونو ډکه شي .

ښاپیرۍ په ډیر فاتحانه انداز څنې څنډ وهلې او له وریځو ډک آسمان ته یې سترګې پورته کړې . یو څو پاسته پاسته څاڅکي بې پر اننګورا وو ریدل .اننګي یې لکه د ګلاب غوټۍ تک سره واوښتل . غوښتل یې چې له ډیرې خوښۍ نه نارې وکړي ، او پر ګل هم زیرې وکړي چې ... خو ناڅاپه یوه توندہ سیلۍ راوالوته د باران تنکي تنکي څاڅکي بې لکه د بلبلانو

ستـرګـې آسـمـان ته پورته کړل . ناترسـه تندورنود باران ستـرګی په متروکووهلې . دباران ستـرګـې وپړسـیـدې ، اوشیـبـه وروستـه دړندوستـرګوپه څیـرړلی راو ،وریده . دړلی یوڅـوغـتـې دانـې په ګلدان ولګیـدې او ګلدان مات شو . ښـا پیری چیـغـې وکړې ،مـات ګلدان یې لکه خپل مات زړه په غیبرکې راواخیست . ړلی ښا پیری ته په قهرشوه او پر تنکیولاسونوېې وویشته . ړلی غوښتل چې مات ګلدان دښا پیری له تنکیـولاسـونو وغـورځـوي . له لاسـونـونـه یې تکـې سـرې وینې وبهیـدې خوبیا یې هم مات ګلدان له لاسونوونه غورځیده . په وینوسور ګلدان یې په خپلو زخمي لاسونو کې کوټې ته راوړ . ګل په کټ کې پروت و . نری نری زګـیـروی یې کاوه . ناڅاپه ،په کټ کې په لټ راواوښت او سوې کړیکه یې وکړه :

ـــ له تانه یې هم دسروګوتـه ... دګل ژبه دسرود ګوتې په تکي وچه وه دریده . ښا پیری په منډه ورغله :

ـــ نه . . . . . . . نه ګله...داده ... دسروګوته ...دسروګوته مې په ګوته کې ده ته وګوره ... لاس مې وګوره ... ټولې ګوتې ... ټولې ګوتې مې هم جوړې دي . ګل یې ښکل کړ اودسروګوته یې دګل ستر ګوته ونیوه . ګل بې سده شـو . دښـا پیـری زړه پښـوته ولـویده . دګل لـه کـوره راووته . دښا پیریانو په ښارکې هرې خواته دغشوشغاخوره وه . ښا پیری بیخي ، لکه کڼه داسې وه . هغې دغشو آوازونه ،نه اوریدل . په غوږونو کې یې دګل نریونریوزګیرویو ځاله جوړه کړې وه .د ګل پر هغـه څانګه یې زړه سوځیده چې تازه یې په ګلدان کې دراشنه کیدوپه خاطرښخه کړې وه . ډیرو او ښکو یې په سترګو مهرونه لګولې وو .ښا پیری لیونـي لیـونـي ګامونه اخیستل ، ناڅاپه یې پښه لـه کوم شي سره ولګیده ډیره سختـه راوغـورځـیـده . لـه ستـرګـونـه یې داوښکو غټ غټ څـاڅکي لرې وغورځیدل . ناڅاپه یې سترګې خلاصې شوې .

دښار په څلور لاري کې همغه سپاره ولاړو و. د تولو آسونه داسې تک سره وو ، لکه په وینو کې چې لمبید لي وي. ښا پیرۍ ته تول سپاره دنکلونو د دیوانو غوندې وبریښیدل . په خپله هم ، لکه دنکلونو ښا پیرۍ ویرې واخیسته . لاره یې بدله کړه ، ګام پر ګام یې شا ته کتل چې د سپر و ورپام نه شي. د سپرومشرد تولو په سرکې ولاړو. په ګوته کې یې د سرو ګوته ځلیده . تورې یې لکه د دوزخ داور لمبه پړک واهه . دده او دده د آس په سترګو کې یو عجیبه فاتحانه غرور ګډیده. د سپرومشرد مخامخ غره په هغه لوړه څوکه کې سترګې ګنډلې وې او له ځان نه ډیرراضي معلومیده. ځان ورته دنکلونو له دیونه هم زړوروبریښیده . دی داڅوکاله دنوموړي غره هرې څوکې ته څوڅوځله ورختلی و. ده به په دې غره کې دښاپیریانو ښکارکاوه . دی به چې دې غره ته د ښا پیریانو په ښکارپسې تلونو په هر ګام به یوه لپه طلاورکول کیدې .

دسپرومشرد غره له لوړې څوکې نه سترګې راکوزې کړې . له خپل بیدار، بخت نه ډیرخوشحاله بریښیده . له خندانه شین شو. تولو سپرو وخندل او بیا تول آسونه له مستۍ نه وشښنیدل . دسپرو مشردخندا په څپو کې وویل :

ــ هم موښکارکړل او هم راته رام دي ، دې ته وایي بخت .

دسپرو مشر سپروته مخ ورواړاوه :

ــ تاسې پوهیږئ چې څوک یادوم ؟

سپاره له خنداشنه شول :

ــ نورنو څوک یادوې خوهمدا ښاپیریان یادوې .

ددوی خندادښا پیریانو دښارګوټ ګوټ ته وروررسیده .

دسپرومشرله ډیرې خوښۍ نه نارې وکړې :

ــ تاسې وګورئ هغه نه ده ؟

تولو سپروپه یوه آواز وویل :

ــ همغه ده .

دسپرو مشرد مارش غږوکړ. ټول سپاره دسترګو په رپ کې وروړسیدل . ښاپیرۍ، لکه بازوهلې مرغۍ له سرنه ترپښوپورې لړزیده . لړزیدلي ګامونه یې یوځه ګړندي کړل . سپین ټکری یې له سره وښوییده ، مرهم اوپټۍ یې له لاسونو وغورځیدل . ښاپیرۍ یوناځاپه ،په ځمکه پورې میخ شوه . مرهم اوپټۍ دسپرو دمشرد آس ترپښولادي نالونو لاندې شول . دښاپیرۍ په زړه کې دیوه سخت دردځړیکه خوره شوه ، لکه چې زړه یې دآس ترنالونو لاندې شــوی وي ، لکه مـــات ګلدان چې دآس ترپښــولاندې ذرې ذرې شــوی وي ، لکه دګل پرې شـوې ګــوته داس ترپولادي نالونو لاندې شوې وي ،له ښاپیرۍ نه چاپیره سپاره راتاوشول ، لکه غرځنۍ چې د پړانګانو په منځ کې راایساره شي . دسپرو مشرله خندانه شین شو. خندایې دښاپیریانو ښار ولړزاوه . ښاپیرۍ ته یې وویل:

ــ ته خبره نه یې چې دهوا مرغۍ هم له مانه ،نه شي خلاصیدای .

دښاپیرۍ په مرۍ کې لاړې وچې وې . خوله یې خبروته نه جوړیده . دسپرومشرله آس نه راکوزشو. ښاپیرۍ د خپل کیڼ لاس په غچۍ ګوته کې دسروګوته دښي لاس په ورغوي پټه کړه . دسپرودمشرورپام شو.له خندانه شین شو:

ــ ښاپیرۍ جانې ته مه ویریږه له تانه دسرو ګوته نه اخلم . ګوته دې هم نه غوځوم. رښتیا ګل ځنګه دی ؟ پرې شوې ګوته یې ځنګه ده ؟ باوروکــړه ســتـا پـه خـاطر مـې پریښــود کـنه ؟...

دسپرومشریوه اوږده خنداوکړه . ښاپیرۍ، لکه پانه رپیده سپڼ یې هم له خولې نه ،نه خاته دسپرو مشرورنژدې شو:

ــ ولې داسې رپیږې ؟مـه ویریږه هیڅ هم نه درته وایم . هو ! هو ! داځنې دې ځنګه بربنډې دي ؟ دسپرو مشردښاپیرۍ په ځنوتکری ورسم

کړ. د سپرو د مشر په ګوته کې د سرو ګوتې پړک وکړ. د ښاپیرۍ په سترګو کې، لکه مات غمي او ښکې وځلیدې. د سپرو مشر بیا په خبرو پیل وکړ:

ـــ ګوره ښاپیرۍ! اوس خومې تکړی هم ستا پر مخ درسم کړ، ستا پرده مې وکړه اوس خو...

اوس خو ته... اوس خو ته د ګل نه یې! ته... ته زما یې... زما... پوه شوې؟

د سپرو مشر ښاپیرۍ ته خوله ورنژدې کړه. له خولې نه یې د شرابو تونده بوی ختو. ښاپیرۍ وبوږنیده او ناڅاپه یې پر مخ ورتو کړل.

شیبه وروسته د سپرو مشر او سپاره بیرته راو ګرځیدل. د آسونو پښو پر ځمکه سره خاپونه جوړول. په نالونو کې یې تار تار څنې ښخې وې. د سپرو د مشر توره په وینو تکه سره وه. لکه د دوزخ داور لمبه پړک یې واهه. په ګوته کې یې دوې د سرو ګوتې ځلیدې. ګل نرۍ نرۍ زګیروی کاوه د مات ګلدان پر سرې مرې مرې او ښکې راڅڅیدې او د ښاپیریانو پر ښار رڼلی وریده.

پیښور ۱۳۷۱

# دوه دالماسو غمي

که څوک سوګند وکړي چې زه به له خدای سره خبرې کوم د خدای کتاب دې ولولي سوګند به یې پر ځای شي . ((په دنیا کې هېڅ داسې وچ او لمده نه شته چې د خدای په کتاب کې یې ذکر نه وي راغلی ))د خدای په کتاب کې راغلي دي :

ـ د خدای د لارې شهیدان به له ټولو نه ښکلي جنت ته ځي . په جنت کې یو جنتي په هغو ښلاګانو کې لوبېږي چې په دنیا کې د هغسې ښکلاګانو تصور هم نه شي کېدای.

موږ شاعران هم عجیبه لیونیان یو ، یوه ښکلا له بلې ښکلا سره تشبیه کوو او یا بیخي دیوې داسې ښکلا لپاره چې په شعر کې یې نوم هم نه وي را وړل شوی یوه بله ښکلا د مستعار نوم په توګه راوړو . ما هم ډېر ځله دا ګناه کړې ده . یو ځل مې په یوه شعر کې د خدای پاک د کتاب لپاره د خدای پاک شوندې د مستعار نوم په توګه راوړې دي . په یوه شعر کې مې لیکلي وو :

ـ « د خدای پرشونډو یز داني موسکا خوره وره شوه »

توبه مې دې وي خدایه ! ګنهګار مې مه کړې ،نعوذ باالله زه خو نه

پیامبر یم او نه والي ، بس یو شاعر یمه هغه هم یو لیونی شاعر . په هم دې شعر کې مې له خدای پاک نه پوښتنه کړې وه :

ـــــ « خدایه ته ووایه اوس چېرته گرځې ؟ »

دا ډېر اورډ شعر دی او ددې شعر دقهرمانې کیسه به ټکي په ټکي درته وکړم . لومړی داهم واورئ چې ځینې ملایان او ځینې له خبرونه خبرې جوړوونکي خلک پرما ډېر زیات په غوسه وو . دوی هم ملامت نه وو ، ځکه دوی دلیل وړاندې کاوه چې په شعر کې لوی خدای داسې گڼل شوی چې گواکې جسم لري . یعنې دخدای دشونډو ذکر په شعر کې راغلی دی . ما له دې تورونو څخه په دې ځان خلاصاوه چې دخدای پاک دمقدس کتاب قران لپاره مې دخدای دشونډو مستعار نوم راوړی دی . . یعنې پرځای استعاره مې راوړې ده چې پر خدای مین خلک ورباندې پوهیږي . ځکه قران دخدای خبرې دي او له خبرو سره ژبه اوشونډې ډېر نژدې نسبت لري .خیر په هر صورت داخبرې خو ورو ،ورو سړې شوې ، که رښتیا درته ووایم زما دشعر هنگامه هم سړه شوه . زه په دې هم خوریدم چې ددومره لویې او پاکیزه قهرمانې لپاره دویل شوي شعر هنگامه خو باید ابدي وای . ځکه هغه خو دپرښتو کالي په غاړه اسمانو نو ته تللې وه چې هلته یې دسپوږمۍ تکه سپینه چمبه وهله او دخپل ازاد ناویتوب خوره او لاهوتي سندره یې غږوله . اوس به له تاسو سره سوال پیدا شوی وي چې هغه څنگه له تیاره ښاره آسمان ته لاړه . کیسه داسې ده :

هغه ښار خو تاسې ټول پیژنئ چې دا ډېره موده کیږي هلته رڼا مړه شوې ، ژوند زخمي شوی باروت را ژوندي شوي له مرگ نه ښامار جوړ شوی دی او دښار لمر یې په ستوني کې پټ کړی دی .دشپې دسپوږمۍ او ستورو په تتو هندارو کې دلمر دړنا مخ نه لیدل کیږي . دښار دگلونو لوگی دی او دښار ټول دیوالونه زخمي زخمي دي .دښار هرد

کوځه یوه نوې او ژوندۍ کربلا ترسیموي . له دې نه هم خبر یئ چې په دې تیاره ښار کې دانسان په جامه کې ځینې ابلیسان هم ګرځي . دوی په لاسونو کې اور او په سترګو کې داغونه ګرځوي . دوی ښکلاګانې سوځوي او سپینې لمنې تورې او داغمنې کوي . ددې ابلیسانو یوه ډله اور په لاسونو او داغونه په سترګو کې دښار دیوې ماڼۍ شپږم پوړ ته وختله ، دماڼۍ په شپږم پوړ کې دشاعر دیوه ناویل شوي شعر پاکیزه قهرمانه اوسیده چې دپرښتې په څېر پاکه او دیوه ځلانده ستوري غوندې بې داغه وه . قهرمانې لاسونه لپه کړي وو اود لوی خدای نه یې خپل تیاره ښار ته درڼا دعا کوله چې ناڅاپه یې ددروازې ډېر سخت غرب واوریده . قهرمانه ولړزیده او په شونډو کې یې درڼا دعا نیمګړې پاته شوه . مخامخ یې دابلیسانو ډله ولیدله چې په لاسونو کې یې اورونه او په سترګو کې یې داغونه وو . قهرمانې دسپینې مرغۍ په څېر ځان په پنجره کې ولید . د ابلیسانو پر داغمنو سترګویې لعنت وو ایه . دژوند پنجره یې له شپږم پوړنه لاندې را وغورځوله او دپرښتې په څېر آسمان ته لاړه . اوس چې پر کیسه پوی شوئ تاسې به هم وایئ چې دداسې قهرمانې لپاره خو دداسې شعر ویل په کار و ، چې دقهرمانې دروح په څېر ښکلی وای . باور وکړئ چې زه په خپله هم ځوریدم چې یوې ډېرې سترې قهرمانې ته مې ولې داسې شعر ویلی چې څوک یې نوم هم نه اخلي . په هر صورت کیدای شي ستاسو زړه رابانديې سوځیدلی وي داسې هم نه ده . کله چې څه موده وروسته دقهرمانې تیاره ښارته لاړم نو دقهرمانې هغه ګاونډي ته ورغلم چې دتیاره ښار لپاره درڼا پر سندرومین دی . دښار خلک دده په باب عجیبې کیسې لري . وایي :

ـ ډیر غریب دی خو مینه یې ډېره غني ده . له ووجود نه ضعیف او عزم یې دغره غوندې کلک دی . دی باید دښارلیونی مین وګڼو . دی دښار په غره کې اوسیږي . دغره تولې ونې آسمانه ته غځیدلې چې دغره لاسونه بلل کیږي . دا لاسونه په خپلو لپو کې درڼادعاګانې خدای ته

رسوي . پاس له آسمان څخه دغره پرسر او دغره پر لاسونو داور له سیلۍ سره یو ځای د تبرونو باران وریږي دغره ډېر لاسونه دغره په پښو کې غوځ ، غوځ پراته دي .د ښار دلیوني مین ټولې جامې داور سیلۍ وړې او سوځولې دي . د ښار لیوني مین د دې لپاره چې تیاره ښار ته یې لږ رڼا ورکړې وي داور او لمبو کالي اغوستي او ځان یې هم له بربنډتوب نه ساتلی دی. په کوم غره کې کې چې دغه لیونی مین او سیږي په دې غره کې د تکو سپینو او بې داغه الماسو ستره خزانه پرته ده . د ښار مین دا خزانه د ښار د ټولو مینانو او ښکلو لپاره ساتلې چې یوه ورځ به یې په ډالۍ کې ورکوي . په ښارکې دابلیسانو هغو ډلو چې په لاسونو کې یې اورونه او په سترګو کې داغونه لري د مین پر خزانه ډېر ځله یرغلونه وکړل . غر یې زخمي ، زخمي کړ خو د ښار مین او دخزانې ساتونکي یو غمی هم ورنه کړ . مین ته هرغمی دایمان په څېر ګران دی . دا بیخي دمعجزې په څېر کله کله پېښیږي چې غر دموم په څېر نرم شي او د ښار مین د نور په لاسونو دوه غبرګ غمي را واخلي او دډالۍ په ډول یې چا ته ورکړي.دا د ښار د خلکو خبرې وې . زه حیران شوم چې دا څنګه ټول خلک په استعارو ، تشبیهاتو او سمبولونو خبرې کوي . دوی لکه چې ټول شاعران شوي دي .

زما په زړه کې د ښار دقهرمانې کیسه داسې غوټه شوې وه لکه د ښار دلیوني مین په غره کې پټ دالماسو غمي . ما داغوټه په زړه کې نه شوه ساتلای .زه نېغ د ښار لیوني مین ته ورغلم . په دې هیله چې دخپل زړه غوټه ورته وسپړم . دقهرمانې سندره مې ورته واوروله . دسندرې له اوریدو سره سم د ښار دلیوني مین داوسیدو پر غره یوه ښکلې او غم انګېزه زلزله راغله او ماته یې دنور په غبرګو لاسونو دډېرو سپېڅلو او بې داغه الماسو دوه غبرګ غمي راکړل . په غمیو کې د تیاره او ژوبل ښار ژوندی تصویر پروت و . دا دوه غمي دکابل دیوه شاعر دوې ځلیدونکې اوښکې وې چې د « ناهیدې » دروح په څېر سپېڅلې او بې داغه وې.

پېښور ۱۳۷۳

# له نرگسه تر نرگسه

......څه چې زه لیکم دا زما فطري حق دی . ته په دې کې څه مه وایه چې زما په باب ولې لیکنې کوې . پر تا باندې چې کوم شاعرانه کیفیت راځي او یا له یوې شاعرانه پېښې متاثره کیږې او شعر لیکې ایا چا ته حق ورکوې چې تا ته ووایي :

ــ دا شاعرانه کیفیت پر تا ولې راغی ؟ ته ولې له یوې پېښې متاثره شوې ؟ له کومې پېښې چې ته متاثره شوې یې او یا همداسې په نا خود اګاه ډول په خپل وجود کې ،په خپل زړه کې ، په خپل روح کې سندریز کیفیت حس کوې ، دزړه په خواکې دې په ګوګل کې په عمودي ډول خوږې خوږې څریکې پورته راولاړیږي او ددې تولو خوشالوونکو او یا غموونکو دردونو په نتیجه کې کوم شعر لیکې ایا چا ته حق ورکوې چې تا ته ووایي :

ــ دا ډول کیفیت ولې پر تا راغی ؟

زه خپل ځان ته هم حیران یم چې ستا په تش لیدو او اوریدو پر ما دادومره بدلیدونکې زلزله ولې راغله ؟ زه خیال کوم چې لوی خدای زما دزړه ، تخیل ......واک ستا په لاس درکړی دی . ایا دارښتیا ده ؟ ته

خو دې لږ له شپېږم حس نه پوښتنه وکړه . زړه مې غواړي دژوند ټولې ښکلاګانې ، غمونه ، دردونه ، بریالیتوبونه او ناکامۍ یو په یو تاته ووایم . دا فطري ده چې هر انسان ،په خاص ډول کنجکاو او هنرمند انسان په خپل زړه کې ډېرې غوټې لري .هر څوک غواړي چې د زړه غوټې یو چا ته وسپاري . باور وکړه په خپل ټول عمر کې هر چېرته چې تللی یم خدای ډېر ښکلي دوستان راباندې لورولي دي چې یوه نیمه د زړه غوټه ورته سپړم او د زړه بار سپکوم . خو ستا له لیدو او پېژندو راپه دې خوا مې زړه له داسې ښکلو غوټو ډک شوی دی چې څوک یې په سپړېدو نه پوهیږي . زړه مې دا غوټې د الماسو او مرغلرو په څېر ستا دراز غاړې ته ساتلې دي.

زه پوهېږم څومره چې زه ستا په باب بې کراره یم او څومره چې زه ستا په باب فکر کوم ته کیدای شي زما په باب هغسې بیکراري او هغسې فکر ډېر لږ هم ونه لري . ته داسې مه وایه چې زه ولې تاته مخاطب یم ؟ دا هغه خبرې دي چې زه یې باید تا ته وکړم . دا خبرې باید د هوا د مرغانو په څېر آزادې وګرځي . زه پر دې مرغانو دا ظلم نه کوم چې د وجود په پنجره کې یې بندیوان کړم . زما د خبرو مرغانو ته ، ته د یوې ښکلې او سمسورې ونې حیثیت لرې .یوه ونه مرغانو ته نه شي ویلی چې تاسې زما پر څانګو مه کښېنئ.

سره له دې چې ته یوه شېبه هم زما درازونو اوریدو ته نه یې ناسته خو زه بیا هم تا د خپل ځان لپاره د ټولو نه ښکلې همرازه ګڼم .ته به پر دې ګډو وډو وخاندې خو زه پر دې ګډو وډو نه شرمیږم او په ډېر صداقت سره دا هر څه درته لیکم .دا هر څه چې زه یې همدا اوس لیکم دا هغه خبرې دي چې همدا اوس زما په روح او زړه کې لکه د شنو اوبو ویالې روانې دي. پر دې خبرو مې نه مخکې فکر کړی او نه مې مخکې تیارې کړې دي .

ته چې ما دخپل ځان په باره کې هر څه ګڼې هغه ستا خوښه ده خو زه روحاً پرتا او ستا په باب دفکر او رياضت کولو روږدی يم .لکه يو شرابي او يا بل سخت نشه يي چې پر يوه نشه روږدی شي بې له نشې نه کرار نه لري . داداسې عادت نه دی چې پرېښودل يې اسان وي. پردې عادت «تاسره په عالم رويا کې مشغوليدل ،مينه لرل » زما د ، وس خبره نه ده . دا يوه خدايي پېښه بولم چې له دې پېښې خلاصيدل دخدای په لاس کې دي . نه پوهېږم چې خدای به په دې باب نور څه کوي ؟زه پردې مقدسه نشه روږدی شوی يم او دانشه له عبادت نه هم مقدسه بولم . ستا په باب چې وخت په وخت څه کيفيت راباندې راځي دا به درته ليکم او درليږم به يې . که ته پر دې ليکونو دېره خپه کېدې ستا خاطر به دومره وکړم چې داليکونه به نه درليږم خو له ځان سره به يې ساتم. زه ستا لپاره له خپل عشق نه رنګين او شاعرانه جهانونه جوړوم .

نيمه شپه ده ،دريکشو اوازونه دشپې چوپتيا ماتوي . زه دخپلې تنها کوټې په کټ کې ناست يم او پر مخامخ مېز له ننګرهار څخه راغلي ميلمانه نرګس راته سترګې سترګې دي . ديوه نرګس دګل پرپانه ستا دنوم اول او اخر توري ليکل شوي دي همدا نن مازديګر مې په ښارکې ديوه ماشوم په لاس کې دنرګسو ګېډۍ وليدې ماته يې دتېر کال دنرګس ګلونه راپه ياد کړل چې وخت په وخت به مې اخيستل او ستا نوم به مې پرې ليکه . دتېر کال هغه نرګسي خاطرې رايادې شوې چې ته يو څه مهربانه وې .ما له ماشوم نه دنرګسو ګېډۍ ستا په نوم او زما دوطن په نوم واخيسته.ماشوم راته وويل چې دادکابل نرګس دي.زه پوه شوم چې دپښور خلک ټول افغانستان ته کابل وايي .له نرګسه تر نرګسه غمونکې شپې مې يوه په يوه پر زړه راووريدې .له صدر نه تېر ماښام پلی راروان وم د خپل دفتر ترڅای تاون پورې راتلم. په لاره کې مې «دشاعر او نرګس » په نوم يوه شاعرانه ډرامه ګې په زړه کې جوړيده

ډېر خوشحاله وم چې يو تخليق به وکړم او يوه کوچنۍ شاعرانه ډرامه ګۍ به وليکم. له نرګسو نه به پوښتنه وکړم چې له ننګرهار نه ولې راغلئ؟ ولې داسې ستړي برېښئ؟ له تورخم نه څنګه راتېر شوئ؟ نرګس به له دې نه ډېر خوشحاله وي چې دخپل ځان غونډې غمجن او ستړی وطنوال يې پيدا کړی دی. دزړه خواله به راسره وکړي او خپل کوچني خوږ ک زړونه به راته تش کړي. دزخمي بلبلانو او ستړو بوراګانو کيسې به راته وکړي او دوطن دنجونو دتشواوربلونو کيسې به راته وکړي. زه په دې خيالونو کې راورسيدم. دنرګس ګلونو ته مې ګلدان جوړ کړ. دګلدان تېرې څوکې زما ګوتې هم ژوبلې کړې. نه پوهېږم زما هغه ځيږه لاسونه ولې دومره تنکي شوي دي؟ دګلدان له اوبو سره مې دوه څاڅکي وينې هم ګډې شوې. دنرګسو ګلدان مې مخامخ پرميز راته کېښود او دحال په ژبه مې ورته وويل ښه اوس کيسې وکړئ. نرګسو دخپلو کيسو پرځای ستا کيسې را واخيستې. اخ ظالمې! زما په ټولو کارونو کې لاس وهنه کوې، خدای دې انصاف درکړي.

۱۸/۱۱/۱۹۹٤ پېښور ټاون، نيمه شپه

# رنگینه ورکه

په ماشومو اداګانو د شاعر څنګ ته ورغلم. شاعر سترګې نه رپولې او له ځانه ډېر لرې تللی و. ما پر خپلو څنو لاسونه را تېر کړل او د بنګړو شرنګا مې خوره شوه خو شاعر خپل ځان ته رانغی. هغه لکه چې نه زما د بنګړو شرنګا اورېدلې وي او نه یې زما د څنو اولونګینو امیلونو خوشبویي حس کړې وي. همداسې په خپله ورکه پسې ورک و. یوه شېبه یې په څنګ کې ودرېدم. ورو ورو او په منظم تال مې له ځمکې سره پښې وهله. د پایزیب نرۍ شرنګا مې د شاعر له تخیل سره د شاعر په ورکه پسې لېږله. له ځان سره مې وویل:

ـــ چې دا بیا په کومه رنګینه ورکه پسې ورک دی؟

زه یوې شېبې انتظار هم سترې کړم. ددې لپاره چې د شاعر پام د خپل ځان پلو را واړوم او خپله ورکه زما په سترګو کې ولټوي په ناز ناز مې یو بیت ورته وو ایه:

ـــ راځه په یوې ورکې پسې د واړه وګرځو
لاسونه کړو یو بل ته ورپه غاړه وګرځو

شاعر سترګې نه رپولې او زما بیت یې وا نه ورېد. په ناز او شوخۍ

مې ورته وويل:

ـــ ليونيه سلام!

زما سلام يې ادا نه کړ او زه له خندانه شنه شوم. زما خندا په غرونو کې انګازه خوره کړه. شاعر دسترګو په رپ کې خپل ځان ته راوګرځيد او ډېره سخته کړيکه يې وکړه:

ـــ اخ ظالمې! مړدې کړم.

زه بيا له خندا نه شنه شوم او په خندا خندا کې مې ورته وويل:

ـــ ولې خو تا به ويل چې خندا دژوند مالګه ده. خو تا به ويل چې زه او ته بايد وخاندو.

زه بيا له خندانه شنه شوم او شاعر ته مې وويل:

ـــ خانده کنه، خانده چې خندا مو سندريزه شي. شاعر نرى زګيروى وکړ او زما پرخوله يې لاس کېښود:

ـــ دخداى په خاطر مه خانده.

شاعر همداسې نرى نرى زګيروى کاوه. لکه چې ما په زهرو لړلې تېره توره وهلى وي او بيا مې پر زخمونو ورته چاڼ شوې مالګه دوړولې وي. لږه شېبه وروسته دشاعر زګيروى غلى شو او ما ته يې ځير ځير کتل. سترګې يې له پوښتنو ډکې وې. مايې په سترګو کې ټولې پوښتنې ولوستې، د يوې پوښتنې ځواب هم راسره نه و ځکه مې ځان تېر کړ او خبره مې په بله واړوله.

ما ځان دماشومې غوندې مرور کړ او پر تنډه مې ګونځې راخورې کړې. ماشوم ناز مې له ماشوم قهر سره ګډ کړ او شاعر ته مې وويل:

ـــ ته چېرې تللى وې؟

ـــ په يوې وړکې پسې.

ـــ په کومې وړکې پسې؟

ـــ په يوې ښکلې او رنګينې وړکې پسې.

ــ ودې نه مونده؟

ــ نه !

ــ اوس يې نه لټوې ؟!

ــ ولې نه ،اوس يې هم لټوم .

ــ اوس يې چېرته لټوې ؟

شاعر موسکی شو او راته ويې ويل:

ــ ستا په سترګو کې.

ما ته خندا راغله خو ډېر ژر مې ځان له خندا نه وساته.

شاعر همداسې زما په سترګو کې سترګې ګنډلې وې . ما ورته وويل:

ــ خبرې وکړه .

شاعر وويل:

ــ رانه ورکې دي .

بيا خندا راغله خو ومې نه خندل .

يوه شېبه چوپه وم خو له چوپتيا نه په عذاب شوم . ځان مې يو څه زړور کړ او د شاعر د جيبونو په لټولو مې پيل وکړ. شاعر حيران شو او راته ويې ويل :

ــ څه شی لټوې ؟!

ما ورته وويل :

ــ خپله ورکه لټوم .

شاعر وويل:

ــ ستا ورکه څه نوميږي ؟

ما ځواب ورکړ:

ــ ستا سندرې .

ما د شاعر له جيب نه شعرونه را وايستل. شاعر وويل :

ـــ داخو تړول تاراوړي دي او تړول به تاته یاد وي .

زه حیرانه شوم او په خپل یاد مې زور را وړ :

ـــ ما کله راوړي دي ؟

په یاد مې نه شول خو دشعرونو په لوستلو مې پیل وکړ . دشعر هر توری لکه یوه اوښکه اوپه هره اوښکه کې یوه سلګۍ . دشعرونو مضمون لکه زخمونه او دردونه . دیو څو شعرونو له لوستلو وروسته مې سترګې له اوښکو ډکې شوې او وړې وړې سلګۍ مې پیل کړې . شاعر ناځاپه کړیکې وکړې :

ـــ اخ ظالمې مړ دې کړم .

ما په ژړا ژړا کې په ډېرې عاجزۍ ورته وویل :

ـــ ولې ما خو څه خندلي نه دي !

شاعر په زګیروو کې راته وویل :

ـــ خو اوښکې هم مالګینې دي . او دژوند دزخم لپاره .......

خبره یې پوره نه کړه او نري نري زګیروي یې پیل کړل لکه زما خوب چې چا په زهرو لړلې تېره توره وهلی وي او پرزخم یې چاڼ شوې مالګه دوړولې وي .

زه له خوبه راویښه شوم او شاعر دیوې رنګینې ورکې غونډې را نه ورک شو .

۱۳/۱/۱۹۹۵ پېښور دشپې څه باندې یوه بجه

# لښته

لکه چې اوس هم دهغې تنکۍ لښتې شغ اورم .زموږ استاد ډېر قهرجن سړی و .له چا نه به چې پرونی سبق هېر و په تنکۍ لښته به یې واهه .استاذ به هر سهار له خپل ځان سره یوه ګېډۍ تنکۍ لښتې راوړې او د ټولګي په کنج کې به یې نېغې کېښودې .موږ به یو ځل خپلو کتابونو ته بیا په کنج کې د تنکیو لښتو ګېډۍ ته بیا تورې تختې ته او بیا د استاد د تندي تختې ته وکتل .موږ به داستاد په تنده کې رڼا یې لټوله .که داستاد په تنده کې به مو یوه ذره موسکا ولیده په زړونو کې به خوشاله شوو او که داستاد تنده به تروه وه زموږ زړونه به لکه دمني پاڼې وریېدل او په زړونو کې به دلاسونو سوی راوګرځیده .زموږ په زړونو کې به سرې لیکې تېرې شوې .استاد به ویل:

ــ تاسو باید سبق په یاد کړئ ! له تاسو نه باید سبق هېر نه شي !

زه نه پوهېږم چې تاسې ولې له سبق سره مینه نه لرئ ؟!

ما به په زړه کې ویل :

ــ یا خدایه ته مې له سبق سره مینه پیدا کړې .یا خدایه ته مې دا ټول کتاب داسې په یاد کړې چې یو ټکی هم را نه هېر نه شي.

موږ به د ټولګي پر زاړه پېڅول ناست وو ، استاد به زموږ په منځ کې ګرځېده او لکه پولیس چې د ډېرو خلکو په منځ کې مجرم لټوي که له استاد سره به موسترګې ولګېدې لکه سړی چې برېښنا ونیسي ټکان به مو وخوړ او سترګې به مو له استاد نه بل خوا واړولې . استاد لکه زموږ په زړونو کې چې ناست وي ، زموږ له منځ نه به یې هغه څوک د پروني درس د یادونې لپاره پورته کړ چې پروني درس به یې هېر شوی و . بیا به مو ناڅاپه د استاد د تنکۍ لښتې شغ واورېده . له چا نه به چې پروني سبق هېر و ټول به یې تنکیو لاسونو ته په تنکیو لښتو ووهلو . د استاد تنکۍ لښتې سخت سوی درلود . موږ ټول ماشومان وو چې استاد به ووهلو ځامخا به موژړل . کومو هلکانو به چې د استاد له لښتې ژړلي وو بیا به نورو هلکانو ملنډې پرې وهلې او ورته ویل به یې :

ــ ته خو ډېر ژاړن یې !

هلکانو به زړونه ټینګول چې د استاد له لښتې ونه ژاړي چې د نورو هلکانو د پېغور نه شي . هغه ورځ مې اوس هم په یاد ده لکه د استاد د لښتې شغ چې اوس هم اورم . له مانه پروني سبق هېر شوی و . زه په ټولګي کې ډېر خپه ناست وم . له ځان سره مې ویل :

ــ اف خدایه د اسبق له مانه ولې هېر یږي ؟ دا زه ولې سبق نه شم یادولی ؟

په زړه کې مې ډېرې دعاګانې کولې : یاخدایه ته خو نن د استاد سترګې پرما وتړې چې هېڅ مې ونهویني . یاخدایه! . . . یاخدایه . . .

یو وار الحمد او درې واره قل هو الله احد مې وویل او پر ځان مې چوف کړل . . . . بیا مې الحمد الله پیل کړه لا مې پوره کړې نه وه چې استاد راباندې غږ کړ :

ــ ته پاڅه پروني سبق ووایه !زه لکه پانه رپېدم د درس له ویلو ورانډې مې خپل نبی لاس استاد ته د وهلو لپاره وړاندې کړ . دوه درې

لښتې يې سخت سخت ووهلم .ښي لاس مې دڅلورمې لښتې تاب نه درلود .بيامې کيڼ لاس داستاد تنکۍ لښتې ته دوهلو لپاره وړاندې کړ .استاد کيڼ لاس ته هم خپله تنکۍ لښته بېدربغه راخلاصه کړه. لښته زما پر کيڼ لاس باندې ماته شوه خو زما په کيڼ لاس کې يې ژوره تغمه جوړه کړه .سخت درد مې حس کړ خو د نورو ټولګيوالو له پېغوره مې زړه ټينګ کړ .لاسونه مې په تخرګونو کې ونيول او له ځانه سره مې پټ پټ ويل:

ــ وی الله ... وی الله .... استاد ته مې پټې پټې په زړه کې ښېرې کولې .استاد راته ويل :

ــ له تانه همېشه سبق هېر وي. ته له سبق سره هېڅ مينه نه لرې .ماخپل کيڼ لاس ته وکتل د کيڼ لاس په تنکي ورغوي کې مې تغمه غځيدلې وه او سخت سوی يې کاوه .

اوس له هغه ماشومتوب نه ډېر کلونه تېرشوي دي خو زما دکيڼ لاس په ورغوي کې د تنکۍ لښتې تغمه اوس هم ژوندۍ ده .دې تغمې ته چې ګورم ټول سبقونه رايادېږي .اوس مې هېڅ سبق نه هېرېږي ،اوس مې له کتابونو سره مينه پيداشوې ده .اوس مې هېڅوک لاسونو ته په لښتو نه وهي .اوس همېشه کتابونه ګورم ، سبقونه وايم .اوس مې سبقونه ښه يادېږي .ياديدل خو څه کوې چې هېڅ مې نه هېرېږي .اوس مې له کتابونو سره مينه پيداشوې ده .اوس مې له تنکيو لښتو سره هم مينه پيداشوې ده .لښتې لويې لويې ونې شي .ځنګل شي .باغونه شي ،ميوې نيسي ،سيورې خوروي.لښتې سرې ته يو څوک ورياد وي .داسې يو څوک چې دګلونو غوندې ښکلې نوم لري .چې د تنکۍ لښتې غوندې ځواني لري ..چې باد يې نه شي ماتولی .چې پرسر ګيډۍ ګيډۍ ګلونه ګرځوي .چې ګلان يې خزان نه شي ريژولی .

ډېر ېخوامې په يو کتاب کې لوستي وو......نه نه توبه مې دې

وي خدايه، زما ديوه ورک شعر يوه کړی‌وه:

ـ «دغزل مسرې لکه دزړه تغمې دي. داسې تغمې چې يو خوږ درد لري. دخپل ورک شعر داکړی زما هېڅ نه هېرېږي. بيخي لکه زما دزړه تغمه داسې ده. لکه يوچاچې زما زړه په تنکی لښته وهلی وي. لکه چې لښته زما دغزلونو او سندرو استاده وي.

۱۹۹٤/۱۲/۳ پېښور

# دلرکلي ملنگ

څه موده کیږي چې زه لیوني سپي خوړلی یم. زما په ستوني اوږې کې دلیوني سپي دغاښونو زخمونه دي اوزما پرمخ باندې دلیوني سپي نوکارو ژورې لیکې تیرې کړې دي. داسې بریښي چې دلیوني سپي لیونیو زهرو زما پرزړه او دماغو اغیزه کړې وي. زه کله کله ناڅاپه لیونۍ ژړا پیل کړم او کله کله له لیونۍ خندانه شین شم. زما لیونۍ ژړا او لیونۍ خندا زما له ګاونډیانو خوبونه تښتوي. کله چې ژاړم زما اوښکې زما پرمخ دلیوني سپي دنوکارو په ژورو کرښو کې رابهیږي. تودې اوښکې مې وچ زخمونه تازه کوي او یو تریخ درد راکوي. کله چې له خندانه شین شم د ټټر او ستوني زخمونه مې هم خولې خلاصې کړي او د درد لیونۍ څړیکې په کې را ویښې شي.

بیګامې هم یو لیونی خوب لیده. زموږ دوطن پاچا مې په خوب لیده. پاچا پر یوه ځلیدونکي آس سپور وي. توره دریشي یې اغوستې وي او دخولۍ په تاج کې یې دباز تصویر وي. په پاچا پسې وروسته یو لوی لښکر روان وي. ټول لښکر تورې دریشۍ اغوستې وي. دپاچا له زرین آس نه وړاندې یو تخت روان وي او پر تخت باندې

تابوتونه وي .تابوتونه په گلونو کې پټ وي. پر گلونو باندې د شاتو مچۍ او بوراگان هم گرځي .په فضا کې يو غيبي غمجن موزيک دروان تخت پر سرد تابوتونود درناوي لپاره غږول کيږي .ټول لښکر ورو ،ورو سلگۍ وهي .د ټول لښکر له سترگونه مرۍ مرۍ اوښکې رابهيږي .د پاچا له سترگو نه هم غبرگې غبرگې ځليدونکې اوښکې رالويږي .د پاچا د ځليدونکي آس په سترگو کې هم اوښکې پنډې وي .زه د پاچا په سترگو کې اوښکو ته بيا د لښکر اوښکو ته او بيا په گلونو کې پټو تابوتونو ته گورم. په زړه کې راگرځي چې په تابوتونو کې مړي به ليونو سپو خوړلي وي .ما ته هم ژړا راځي او ورو ،ورو سلگۍ وهم .موزيک لا پسې غمجن کيږي اوزه د موزيک له غمگينو څپو سره تېرو وختونو ته ځم. هغه وخت چې زه د مکتب په لومړي ټولگي کې وم .پاچا زموږ کلي ته راغلی و .د سپوږمۍ غوندې پر تک سپين آس سپور و .د ستورو غوندې تکې سپينې جامې يې اغوستې وې او د لمر غوندې تک سور او ځليدونکی تاج يې پر سر و .د تاج پر سر يوه ځليدونکې باز وزرې غوړولې وې .د پاچا ټول لښکر تکې سپينې د ستورو غوندې دريشۍ اغوستې وې .د خوشحالۍ موزيک په فضا کې خور و .د پاچا پر سر د سپينو کوترو سيلونو دوره وهله .خلکو به ويل چې دا د سخي صاحب د زيارت کوترې دي .چا به ويل چې له ارم نه د وزرو په جامو کې ښاپېرۍ راغلې دي او چا به آن د پرښتو گومان پرې کاوه .زموږ د کلي سپين سرې د پاچا ليدو ته کتار ولاړې وې .د دوی دا پخه عقيده وه چې که هر چا د پاچا مخ وليدو د دوزخ اور پرې حرام دی .موږ د مکتب ټولو هلکانو پاک کالي اغوستي وو .په لاسونو کې مو د گلونو گېډۍ نيولې وې او په ټوله لاره مو گلونه شيندلي وو .موږ پاچا ته ترانه ويله .د ترانې کړۍ وه: ((عمر دې ډېر شه پاچا)) پاچا له آس نه راکوز شو او پلې زموږ پر خوا راروان وو .ماشومانو گلونه پرې شيندل او پاچا يو يو ماشوم پر تندي

ښکلولو . کله چې زما د ښکلولو وار شو په مینه مې د پاچا په سترګو کې سترګې وګنډلې . د پاچا په سترګوکې د خوشحالۍ اوښکې لکه ستوري وځلیدې . زما په سترګوکې هم د خوشحالۍ اوښکې راغلې . پاچا پر تندي ښکل کړم او زما پر مخ یې لاسونه را تېر کړل .

# # #

د موزیک یوې بلې غمجنې څپې له تېرو وختونو بیرته راوګرځولم . د پاچا په سترګو کې د وه څاڅکي اوښکې لکه دوې هندارې ځلیدې . په دې دواړه هندارو کې مې د لر کلي د ملنګ یو تصویر ولید . د تصویر په لیدو مې ټول هغه ملګري را په یاد شول چې ما غوندې په لر کلي کې اوسیدې او ټول ما غوندې لیونو سپو خوړلي دي . له پاچا نه مې کرکه راغله په زړه کې راوګرځیدل چې زموږ پاچا به خامخا د لر کلي ملنګ ته ازار رسولی وي . ورو ورو جلالي کیدم . له تابوتونو تېرشوم . په رپیدلو شونډو مې په ګلونو کې پټو تابوتونو ته دعا وکړه او نبغ د پاچا د ځلیدونکې آس خواته ورغلم . مخکې له دې چې پاچا ته لاس ورواچوم او له آس نه یې لاندې راوغورځوم پاچا په خپله له آس نه راکوز شو . پاچا دیوه لوی حکیم او روح پیژندونکې په څېر زما په سترګو او څېره کې هرڅه لوستلي وو . بې له دې چې پوښتنه ترې وکړم یو سوړ اسویلی یې وکړ . له سترګو نه یې در اوښکې تویې شوې او داسې یې راته وویل :

ـ ډېر کلونه وړاندې د لر کلي ملنګ راغلی و . زه د ملنګ سلام ته له تخت نه راکوز شوی وم . د ملنګ په کچکول کې مې د دنیا تر ټولو ښکلې او قیمتي مرغلره چې شاعران او عارفان یې د خدای او د مینې کور بولي اېښې وه . . . . .

زه بیا جلالي شوم د پاچا ګریوان ته مې لاس واچاوه :

ـ نو بیا ولې لیونې سپې راښکاري ؟ نو بیا یې ولې د لیونې سپې

 څرمن اغوستې ده .راکړه ځواب راکړه .ما دپاچا پر مرۍ زور وکړ .سا
مې بنده بنده شوه زخمونو مې درد وکړ .ناڅاپه له خوبه راويښ شوم
.لاسونه مې په وينوسره وو. ټول ګاونډيان مې پر چيغو او نارو له خوبه
راپاڅيدلي وو .يو بل ته يې سره ويل : دا ليوني وګورئ!

۱۹۹۵/۱/۲۴ پېښور

# عاشقانه لیکونه

له هره کاره یې ویستی وم. همیشه به مې عاشقانه لیکونه ورته لیکل او وراستول به مې. لنډه دا چې سم مجنون یې رانه جوړ کړی و. زه به په هغې پسې ډېر ګرځیدم خو هغه به مې کله کله دډېرې لرې شیبې لپاره ولیده. زه به دښار په څلور لارو کې لیونی لیونی ورپسې ګرځیدم. چې سره مخامخ به شوو له ډېرې حیانه به تکه سره شوه. دسر په اشاره به یې سلام وکړ او په سترګو کې به یې یوه دنیا مینه راکړه. نه پوهېږم چې په سترګو کې یې دکوم جادو اثر و. ما به داسې وانګیرله چې دښار په څلور لاري کې هیڅ ژوندی ساری نه شته. دموټرو او ریکشو عذابوونکي غږ ونه مې له سره نه اوریدل. لکه دوه په دوه چې په یوه لویه دښته کې و لاړ وو. زما به یې دسر په سلام دزړه سود ونه شو. دسترې مه شي لپاره به مې لاس وروغځاوه. هغې به هم لاس په ویره را اوږد کړ. دهغې پوست او غوښن لاس به مې لکه دحضرت خضر لاس خوږ او څه لږغوندې کلک په لاس کې ونیو. په ګوګل کې به مې په عمودي ډول خوږې خوږې څریکې وغځیدې او یوه شیبه به ځان راته دمینې پاچا وبرینبیده. ما به یې سترګو او مخ ته کتل. په اننګو به یې دحیا سره تله

او راتله . په ترتږۍ ژبه به یې زما نوم واخیست :

–« . . . . . . . زمـا بیـــړه ده زه بـه لاړه شم ! »لکه ژوندی کب چې دسرې له لاسه و ښوییږي داسې به یې لاس زما له لاس نه وښوییده . ما به هم په زړه نا زړه ورته وویل :

– په مخه دې ګلونه.

زما لـه مخـه ښې سره به داسې موسکۍ موسکۍ روانه شوه لکه قدم په قدم چې ګلونه په بدرګـه ورسره ځي . زه به ترهغې پورې په همغه ځای پورې مـیـخ وم چې دښـار په ګـڼـه ګـوڼـه کـې به رانه پنا شـوه . دمـوټرو او ریکشـو بـوړنوونکي غـړونه بـه مې واوریدل . زړه نازړه به راروان شـوم . تولو لارویو به راته کتل او ځینو کسانو به یو بل ته څه سره ویل . ما ته به یې وکتل او بیا به یې په خپلو کې سره وخندل . زه به دښار له ګڼه ګوڼې را ووتم او دخـپل زړه په خلوت کې به مې دمـینې ریا ضت پیل کـړ . دې ریاضت به یو ډول عـاشقانه او کلاسیکه خوشحالي هم لرله . زه په دې ریاضت داسې روږدی شوی وم چې ملګري او دوستان به مې په ټوکو او خبرو بوخت پرا یښي وو او زه به دزړه په خلوت کې غلی ناست وم . دکوم ملګري به راپام شـو له خندانه به شـین شـو او بیـا به یې دمـجلس نورو ملګرو ته وروښودم

– دابیا چیرې تللی دی ؟ یوه بل ملګري به مې وویل :

– هلکه مین خو به نه یې ؟

دپخوا په څېر مې له خپلو ملګروسره ټوکې ټکالې نه کولې . که په مـجلس کې به پر یوه مـهمـه خبره خبرې پیل شوې ما به هم یو څو خبرې وکړې . خپلو خبرو به خوند رانه کړاو دخپلې مـینې په باب به مې تصور پیل کړ . له سیاسي بحثونو مې بد راتلل . که به مې ملګرو سیاسي خبرې اوږدې کړې زه به ډېر په عذاب شوم . مابه په زړه تنګۍ سره ورته وویل :

– خدای ته وګورئ داخبرې پرېږدئ ! ملګرو به مـې وخندل او راته

.وبه يې وويل :

ـ ستا ولې زړه په تنګ شو ؟ همدا زموږ دوطن تراژيدي د نړۍ لپاره دورځې خبره ده .زموږ چې خپل وطن دی دخپل وطن په باب خو بايد خبرې وکړو.

ما به ورته وويل :

ـ په خبرو خو وطن نه جوړيږي .دوی به راته وويل:

ـ نو په څه شي جوړيږي ؟

مابه ورته وويل چې په مينه جوړيږي .

ملګرو به مې په خندا خندا کې راته وويل :

ـ چې سياسي خبرې دې نه خوښيږي نو ته ووايه دڅه شي په باب خبرې وکړو ؟

دملګرو ددې پوښتنې لپاره به زما دزړه ځواب دا و ،چې دمينې په باب خبرې وکړئ.

مابه په زړه کې وويل :

ـ کاشکې دوطن په باب يې هم دهغې غوندې ښکلې خبرې کړې وای له چا سره چې زما مينه ده .ملګرو به راباندې غږوکړ :

ـ تاته وايو دڅه په باب خبرې وکړو ؟

ټولو ملګرو به مې په کړس کړس وخندل .

له يوې ورځې نه به بلې ورځې ته بدليدم او دهغې دمينې په باب په خيالونو کې ډوبيدم .تر نيمې شپې به ويښ ناست وم او دهغې په باب به مې فکر کاوه .عاشقانه ليکونه به مې ورته ليکل او ورليږل به مې .تر يوې مودې خو مې دا ليکونه له خپلو ملګرو پټ و ساتل .زړه مې له دې پټ رازنه ډک شو او نور دراز ساتلو يود ذره ځای هم په کې نه و . دومره له دې عاشقانه رازو نو ډک شو چې نښې يې زما په خبرو کې وځليدې. دانښې نښانې زما ملګرو وليدې او په هر څه وپوهيدل .زما دعاشقانه

لیکونو خبرې زما دملګرو دمجلس خبرې شوې .ما به هغې ته بیا بیا عاشقانه لیکونه ورلیږل خو هغې به چې پخوا کله نا کله دیوه نیم لیک لنډ غوندې ځواب راکاوه اوس یې له ځواب لیکلو قسم کړی و .لکه زما لیکونه چې هېڅ ورته رسیدلي نه وي ،لکه زما لیکونه دمني دونو پاڼې وي چې سرې سیلۍ یې یوه خوا او بله خوا تښتوي .

لنډه داچې زما په دې نوې غوړیدلې سپرلنۍ مینه ډېره ژر دمني سپېره سیلۍ راوالوته .ما دې پوښتنو ته هېڅ ځوابونه نه لرل:

ــ هغه ولې داسې ژر بدله شوه ؟

ــ هغه زما پردې لیونۍ مینه ولې شکمنه شوه ؟

بیا مې په زړه کې وویل :ما خو همیشه په خپلو لیکونو کې هغې ته لیکلي چې تاسره مینه کول دیوه ډېر پټ راز په څېر په زړه کې ساتم .

بیا مې په ځان پورې وخندل او ځان ته مې وویل :

ــ هغه زما په زړه کې اوسیږي ،دهغې یادونه هم زما په زړه کې اوسیږي .دهغې دمینې ټول رازونه هم زما په زړه کې اوسیدل .اوس خو هغه رازونه زما له زړه نه تللي دي اودنیا پرې خبره ده .داچې هغه او دهغې رازونه سره ګاونډیان وو یو ګاونډی دبل ګاونډي له حاله خبریږي .ماچې دهغې ګاونډیان ونه ساتلای شول دمرورتوب حق خولري.بیا به مې ځان ته تسله راکوله چې خدای به یې راپخلا کړي .مرورتوب هم یوډول مینه ده .مروره خو دې وي خو خدای دې وکړي چې له ماسره یې کرکه نه وي پیدا شوې .

اوس مې له مخکې نه هم ډېره په زړه را وریده .هره شېبه مې دهغې په باب فکر کاوه .که پرلاره به تلم هم دهغې په فکر کې به وم او که په دفتر کې به په کار بوخت وم هم دهغې په باب مې فکر کاوه .تر نیمې شپې به یې په یاد کې یوازې ناست وم او په یاد یاد کې به یې خوب یووړم.

نن چې زمونږ د دفتر دلويې او سپينې دروازې زنګ ووهل شو زه دخپل کار دکوټې پر ځای په يوه بله کوټه کې دکوم عاشقانه ليک په ليکلو بوخت وم. په زړه کې مې وويل: څه چې هر څوک وي هسې هم څوکيدار په دروازه کې شته. په دې منځ کې يوه شېبه تېره شوه، عاشقانه ليک دې ځای ته ورسيد:

ــ «ښه! ته ولې له مانه مروره يې؟»

د دې جملې له ليکلو سره سم د دروازې د زنګ وهونکې په فکر کې شوم. په شېبړم حس کې را وګرځيدل: هسې نه چې هغه زما پوښتنې ته راغلې وي؟ عاشقانه ليک مې په دې جمله چې «ښه! ته ولې له مانه مروره يې؟» بس کړاو له نورو هغو عاشقانه ليکونو سره مې په يو کتاب کې کېښود چې د هغې د مرورتوب په زمانه کې مې ليکلي وو او ورليږلي مې نه وو. کتابونه او ليکونه مې را واخيستل او خپل دفتر ته راغلم. په دفتر کې د دروازې څوکيدار ولاړ و، زما په ليدو حيران شو او سمدلاسه يې راته وويل:

ــ ته چېرته په دې سپينه ورځ ورک وې؟! څوکيدار يو ډول دمينې او ناز په انداز کې راته وويل: هغې غريبې خويوه شيبه انتظار هم وکړ خو ته پيدا نه شوې. ډېر مې ولټولې ته په کوم کونج کې غلی وې؟ د څوکيدار له خبرو او دده له څېرې نه په هر څه وپوهيدم. زړه مې په ګوګل کې په ټوپو شو. څوکيدارته مې وويل:

ــ ته څوک يادوې؟! چازما پوښتنه کوله؟

څوکيدار راته وويل: يوه لوړه ښايسته نجلۍ وه، سرې جامې يې اغوستې وې، مخ يې نيم پټ و او ليونۍ غوندې سترګې يې وې.

په شونډو کې مې ورو وويل:

ــ ليونۍ غوندې سترګې يې وې.....

د خاطر په هنداره مې د هغې تصوير راغی. کتابونه او ليکونه مې په

ځنګ کې را واخیستل او بې له دې چې د دفتر له آمر نه اجازه واخلم لیونی لیونی له دفتره راووتم. د سترګو په رپ کې د ښار ځلورلارې ته راورسیدم یو خوا او بل خوا لیوني لیوني ګورم. په ښار کې ګڼه ګوڼه ده. موټرې دي خلک دي یوخوا بل خوا روان دي. زه لالهانده او لیونی لیونی یو خوا ګرندی ګرندی لاړشم بیا را وګرځم. زه داسې انګیرم چې ټول خلک ما ته ګوري خو خلک د ومره وزګار نه دي چې ما ته وګوري او ننداره مې وکړي. زه د سرو جامو والا لوړې ښا یسته نجونې چې مخونه یې نیم پټ وي ګورم. د سرو جامو والا لوړې او ښا یسته نجونې ډېرې وي خو د لیونو سترګو والا یوه هم په کې نه وي. زه له ځان سره وایم: اف خدایه! څه شوه؟ چیرته ترې تم شوه؟ چې دابه ځنګه راغلې وي؟ چې زما عاشقانه لیکونه به ټول زما په وړاندې ځیري کوي او اور به ورته اچوي او که زما مینې ته به د احترام سر ټیټوي؟

زه د سړک پر غاړه لالهانده روان یم، یو خوا بل خوا لیوني لیوني ګورم. پر هیڅ‌ها مې سترګې نه خوږیږي. همهغه لیونۍ سترګې لټوم. ناڅاپه مخامخ سترګې اړوم، یو ښایسته موټر راروان دی. د موټر واګې د یوې لوړې او ښایسته نجلۍ په لاس کې دي. د نجلۍ کالي تک سره، ښکلی مخ یې نیم پټ او لیونۍ لیونۍ سترګې یې دي. زه په زړه کې وایم چې خپله ورکه مې وموندله، اوس به مې له دې ځلور لارې او له دې ګڼې ګوڼې ډېر لرې یوه ښکلې او آرام ځای ته یوسي او هلته به زما لیونۍ مینې ته د درناوي سر ټیټ کړي.

زما پر وچو شونډو سوبمنه موسکا خوره شي. د کیسو د یوه سوبمن اتل په څیر ولاړ یم او د ښایسته نجلۍ د ښکلي موټر دودریدو انتظار ګالم. موټر رانژدې شي او زما سترګې د ښایسته نجلۍ د لیونو سترګو له ځلا نه وبرینښي. موټر ډېر ګرندی تیریږي خو د تیریدو په حال کې مې ډېر سخت ووهي. زه د سړک پر غاړه ډېر سخت را وغورځم. زما پر کتابونو

دښایسته نجلۍ دموټر ټایرونه تېر شي . کتابونه مې پاڼې ،پاڼې شي او دکتابونو له منځ نه زما عاشقانه لیکونه باد خواره واره کړي .ډېر خلک پرما راټول شوي وی خو چې خواره واره لیکونه ووینې زه په خالي میدان پاتې شم او خلک زما په عاشقانه لیکونو پسې خواره شي . دښایسته نجلۍ موټرمخ په بره ګرندی روان وي .دشا له خوا دپولیسو موټر دخطر دسرو څراغونو او بوږنوونکي هارن سره دښا یسته نجلۍ موټر څاري .زه نه پوهېږم چې ولې ښایسته نجلۍ ته په زړه کې دعاکوم :

ـ خدای دې یې په پولیسو ونه نیسي ،پولیس ډېر ظالمان دي .ها خوا زما عاشقانه لیکونه ټولو خلکو نرواو ښځو را اخیستي وي .یو څوک داجمله په لوړغږ سره لولي :

ـ« ښه! نو ته ولې له مانه مروره یې ؟ » ددې جملې په اوریدو ټول خلک په بړ ک بړ ک خاندي او په دې خندا پسې زه هم له درانه خوبه راویښ شم .

۱۵/۱۲/۱۹۹٤ نیمه شپه ،پېښور

# د پرښتې د لاس غوټه

دزمانې له اوږې نه راکوزه شوې وه . کاغذونه او قلمونه یې دراز دغوټې په څېر په لاسي بکس کې اچولي وو . زمانه یې په لاسي بکس کې اچولې وه ، لاسي بکس یې اوږې ته اچولی و . سپین مخ ، سره اننګي ، توري څنې لکه لوګی پرسر ګرځنده ډیوه دښار په څلور لاري کې ګرنګدۍ ګرنګدۍ روانه وه . اخوا دې خوا یې لیوني ، لیوني کتل . لکه کوم صوفي او فلسفي چې دبنیادمو په ډک ښار کې په رڼا ورځ ډیوه په لاس انسان لټوي .

موراوپلار پرې دډیوې نوم ایښی و . لوی خدای پرې دشاعرۍ اولیکوالۍ ګلونه لورولي وو . ډیوه دیوه لرې کلي اوسیدونکې وه خو کله کله به په نویو شعرونو پسې په ښار کې هم ګرځیده . لکه دشاتومچۍ به یې دغزل دګلپاڼو قافیې راټولولې . کله کله به افسانې په دې پسې ګرځیدې ، شعرونه به ورپسې ګرځیدل او دغزلونو قافیې به ورپسې ګرځیدې .

نن ورته ځان په رښتیا پرښته بریښیده . دلاسي بکس بند یې په

کینه اوړه کې اچولی و ،اولاسي بکس به يې کله کله له زړه سره ټینګ ونیو .په زړه کې به يې خوږې ،خوږې څړیکې وغځېدې .په بکس کې يې له غزلونو ، شعرونو ،داستانونو او قلمونو سره سره دډيوې دشعرونو دمینه وال او عقیدت مند هغه لیک هم ملګری و چې ډيوې ته يې دپرښتې لقب ورکړی و .دخپل هنر دمینه وال پردې خبره چې دې ته يې دپرښتې لقب ورکړی و سوچ کاوه:

ــ داڅنګه لیونی دی چې ماته دپرښتې لقب راکوي ؟هسې نه چې په دې خبره ګنهګارشي .انسان ته دپرښتې ویل توبه خدایه ! زه خو انسان یم ،انسان خو همیشه له سهوې او خطاسره دی .بیابه په زړه کې وروګرځیدل :

ــ «زما دهنر اوشعرمینه وال به هسې ځان لیونی ښودلی وي کیدای شي له خپل لیونتوب سره سره به په ډېر څه پوهیږي .زما په خیال دداسې لیوني له خوا ماته دپرښتې لقب راکول له شاعرانه تشبیه سره سره فلسفي او معنوي ریښه هم لري .ځکه انسان دلوی خدای خلیفه دی .انسان اشرف المخلوقات دی .دانسان مقام له پرښتو نه هم اوچت دی .انسان ته خو پرښتو هم سجده کړې ده ،کیدای شي دپورتنیو دلیلونو په رڼا کې به يې ماته هم دپرښتې لقب راکړی وي . »

ډیوه په دې چورتونو کې ډوبه وه چې یو چایې ناڅاپه اوږې ته لاس واچاوه اولاسي بکس يې دسترګو په رپ کې ترې یو وړ. ډیوې کریکه وکړه :

ــ دشیطان زویه !

ډیوه لکه بریښنا نیولې په ځمکه پورې میخ شوه ، رنګ يې سپین تښتیدلی و او په زړه کې يې له تولونارینه وو سره کرکه راغلې وه .څوګامه وړاندې پر موټر سایکل سپاره ځوان دډيوې په لورې مخ راواړاوه. دډيوې لاسي بکس يې په لاس کې وزنګاوه ،په زوره زوره يې

وخندل او موټرسایکل یې مخ په وړاندې ګړندی روان کړ. ډیوې ورپسې کتل خو ځوان د بنیاد مو او موټرو په منځ کې له سترګو پناه شو. لږه شیبه وروسته ځوان هلک له موټر سایکل سره د خپلې لویې بنګلې په باغ ورننووت، په درنګ شیبه کې یې د خپلې ډلې انډیوالان را ټول کړل. زنګ یې وواهه. د سترګو په رپ کې د پاخه عمر یو سړی چې پلن ټټر، قوي اندامونه، فولادي لېچې او توري غټې غټې سترګې یې لرلې راغی او ځوان ته یې وویل:

ـ جي صیب! څه مو ویل؟حکم!

ځوان د بنځینه لاسي بکس زنځیر خلاص کړ، په بکس کې یې لاس وواهه. ټول شیان یې له بکس څخه را وایستل، له خندانه شین شو:

ـ دا خو ټول کاغذونه او قلمونه دي، دا یو څو روپۍ خو هم په کې دي.

د ځوان ملګرو په برک برک وخندل. ځوان په داسې حال کې چې پرڅیره یې د بریالیتوب او غرور نخښې غځېدلې وې خپل جېب ته لاس کړ. له جیب نه یې د پیسو بنډل را واخیست. یو څو نوټونه یې نوکر ته ورکړل. د پاخه عمر نوکر ته یې په ظنزیه انداز وویل:

ـ هلکه موټر دې سټارټ کړه! د سترګو په رپ کې څه مېوه، مېوه، بسکټ مسکټ راوړه چې نن تاسو ټولو ته یوه نوې او خوندوره خبره کوم. داسې خبره چې نه به مو لیدلې وې نه به مو اوریدلې.

د پاخه عمر نوکر پیسې واخیستې موټر یې چلان کړ او د بنګلې د باغ له لویې دروازې راو، ووت. لږه شیبه وروسته یې د خوراک څه شیان راوړل. ځوان په خنداخندا او په یو ډول ویاړ له نجلۍ نه د بکس د تښتولو کیسه وکړه. ځان ورته د فلمونو بدماش بریښیده. د لاسي بکس کاغذونه او قلمونه یې سره واړول راواړول. د یوه لیک عنوان یې په لوړ غږ واوراوه:

—((دشعرونو او هنر د پرښتې په نوم)) له دې سره ټولو په کړس کړس وخندل. دډلې له ملګرو نه یې یوه شوخ ملګري په طنز یه انداز وویل:

— هلکه سمه پرښته دې ازار کړې ده، هسې نه چې عملنا مه دې په سره قلم ولیکي او دوزخ ته دې ولیږي.

بدمعاش هلک یې بیا کاغذونه واړول راواړول او ویې یل:

— اوهو شاعره هم ده. غزلې یې لیکلې دي. چې هم پرښته ده او هم شاعره داسې بریښي چې د خلکو عملنامې یې لیکلې دي. عاجزه عملنامې مې ترې وتښتولې خدای ته به څه ځواب وایي؟ بدمعاش هلک په خوشالۍ چیغې وکړې:

— تاسې غوږ شئ یو داستان یې لیکلی دی. زه یې داستان درته اوروم. تاسې ټول راته غوږ شئ چې پرښتې داستان لیکلی دی که دچا عملنامه؟ دداستان نوم دی ((دصیب د کشرې بي بي زوی))

ښه! داستان داسې پیل کیږي:

— دځوانۍ عمر یې په چړچو او میلو کې تیر کړ. په پاخه عمر کې یې له یوې ډیرې ښایسته تنکۍ پیغلې سره واده وکړ. خپله ناوې یې له سرنه تر پښو پورې په سرو او سپینو کې پټه کړه. دناوې کورنۍ ته یې په لکونو پیسې او نور سره او سپین ورکړل. څوکاله وروسته یې له یوې بلې څوارلس کلنې نجلۍ سره واده وکړ. بالاخره ډیر کلونه وروسته چې دعمر پانه یې په ژیړیدو وه له یوې بلې چټې او پخې پیغلې سره واده وکړ. داواده په داسې درب او دروب تر سره شو چې په ټول وطن کې یې یو ریکارډ ټینګ کړ. دملک لویو لویو وزیرانو، سیاست مدارانو، لویو لویو تجارانو، منشهورو ډمو او سرودګرانو ګډون په کې کړی و. دناوې پر کالیو، لاسونو او پښو سره نه ځاییدل. دناوې دنګه غاړه دالماسو امیلونو درنه کړې وه. څه موده وروسته دصیب کشره او نوې بي بي په یوه داسې نامعلوم رنځ مبتلا شوه چې نه یې څوک په دم پوهیدل او نه په

دارو. په نه خبره به په عوسه کېده. دخپلې غاړې امېلونه به يې شکول. دسرو بنګړي، لښتې او پايزېبونه به يې ماتول. صيب کشرې بي بي ته دډېرو دم ګرو او تاويزګرو دمونه او تاويزونه راوړل خو دکشرې بي بي ليونتوب له يوې ورځې نه بلې ورځې ته پسې زياتېده. صيب بالاخره په دې راضي شو چې کشره بي بي دښار لوی ډاکټر ته هم لاړه شي. صيب خپل ځوان نوکر چې دصيب دمازديګرې چکر موټر به يې چلاوه راوغوښت. موټروان ته يې دښار لوی ډاکټر ته دکشرې بي بي دور وستو امر وکړ. دصيب نوکر موټر چالان کړ. کشره بي بي په شا ته سيټ کې کېناسته. دموټر په هنداره کې يې دموټروان عکس ته وکتل. قهر ورغی، غاښونه يې وچيچل، هڅوکو يې درد وکړ، لکه بې اودې مار تاوه را تاوه شوه. موټروان په نيمکښو سترګو هندارې ته وکتل اوغلې يې په شونډو کې وويل:

ـ الهي خير! په شونډو راغلې موسکا يې په شونډو کې پټه کړه. ددوی موټر دښار دلوی نفسياتي او روان شناس ډاکټر د روغتون په دروازه کې ودرېد. کشره بي بي په نه زړه دډاکټر کتنځی ته ورغله. ډاکټر دهغې په کتنه (معاينه) پيل وکړ. له کتنې وروسته يې يوه کوچنۍ نسخه وليکله او کشرې بي بي ته يې وويل:

ـ دانسخه واخله! ته بې غمه اوسه بېخي جوړه يې. ته صرف يو مشکل لرې، هغه دا چې ته بايد واده وکړې. که ژر ترژره دې واده ونه کړ هرومرو به ليونۍ شې.

کشرې بي بي په شونډو کې ورو وويل:

ـ واده خو مې.......

ډاکټر په تعجب سره وويل:

ـ څنګه! واده خو دې.....

کشره بي بي نسخه په لاس کې په ډېره بېړه دډاکټر له کتنځی راووته

نسخه يې موټروان ته ورکړه .موټروان ځوپاکټه ګولۍ راواخيستې او کشرې بي بي ته يې وويل :

ـ ځوبه ..... کورته !

کشره بي بي لږه غلې غونډې شوه او بيا يې وويل:

ـ زما زړه په تنګ دی ، يووار مې له ښار نه وباسه چې هلته تا ته يوه خبره هم کوم.بيا به بيرته راوګرځو .خير دی هسې هم وخت ډير دی .

کال وروسته چې د کشرې بي بي دغټو او تورو سترګو والا زوی پيداشو دصيب نوکر خدای زده ولې خپلې تورې او غټې سترګې دخلکو له نظره په تورو عينکو کې پټولې .

دډيوې د کشرې بي بي دزوی کيسه ځوان په دې ځای بس کړه .دهغه په خوله کې لاړې وچې وې او نور يې يوه کرښه هم نه شوه لوستلی .په ځان کې ژور شو .لاس او پښې ځينې ورک شول ،دپرښتې دلاس غوټه يې له لاسه وغورځيده .

دبدمعاش ځوان دډلو ملګرو يو ځل دځوان تورو غټو ،غټو سترګو ته بيا دپاخه عمر دنوکر په تورو عينکو کې پټوتورو غټو سترګو ته وکتل اوپه سترګو سترګو کې سره موسکي شول.

پښنورد شپې يوه بجه ۱۹۹۵/۱/۱

# دوه تک سپین مرغان

زه مې دمور په زړه کې ناست یم او دمور دارمانونو ننداره کوم. زما دمور دارمانونو دنیا ګۍ پرما او زما پروړو وروڼو او خویندو ودانه ده. زموږ دبام په تاخ کې ددووتکو سپینو مرغانو ځاله ده .څه موده وړاندې دواړه سپین مرغان په غشو لګیدلي وو. خدای فضل کړی وبلا وه برکت يې نه و ،مرغان دوزرونو په خواکې برسیرن لګیدلي وو.
اوس دسپینو مرغانو زخمونه جوړشوي دي .دادي سندرې وايي او زما دمور په روح کې پټه خوشالي را ویښوي .هغه دي سپین مرغان اسمان ته والوتل ،داسې بریښي لکه زما تک سپین لاسونه ،لکه دوه تک سپین ستوري چې اسمان ته ورروان و .نیمايي اسمان ته ورسیدل ،هغه دي بیرته راوګرځیدل ،داسې بریښي لکه له الوتکې نه چې دوه بمونه زموږ دبام پر خوا راروان وي.
زما دمور په سترګو کې دوه څاڅکي تکې سپينې اوښکې راغلې .مرغان دبام په تاخ کې کیناستل او مورمې خپلې اوښکې دتور پړوني په پیــــڅکه وچې کــړې .مـــورمــــې دمـــازدیګر په لمانځــه ودریده. ځلورکعاته لمونځ يې وکړ .دمازدیګر ستـرګه په غـرغـرده ده

داسمان لمنې تکې سرې دي ،زما دمور په زړه کې يوځل زما دپلار په وينو سور مړی وګرځيد .زما پلار ته يې دعا وکړه .بيايې دبام په تاخ کې سپينو مرغانو ته سترګې واړولې .داځل سپين مرغان د دوو تکو سپينو ګلانو په څير بريښي .زما مور زما دواده په باب فکر کوي .زما لپاره يې دموروالۍ په مينه او پيرزوينه ډيره ښکلې ناوې په خپل خيال کې جوړه کړې ده .زه او زما ناوې يې دلومړي ځل لپاره يو بل ته مخامخ کړي يو .زموږ پرسرونو يې قرآن شريف نيولی دی .زه او زما ناوې يو بل ته دوه سپين ګلونه دګډ ژوند دمينې په نوم ډالۍ کوو .مورمې لا داخيال نه وي مکمل کړی چې زما پيغلوټه خورپر مور غږ کوي :

ـــ مورجانې!نن خو دنکريزو شپه ده موږ ته خو نکريزې خيشتې کړه .دمور خيال مې ړنګيږي او زموږ له لاسونو دوه تک سپين ګلونه لکه دوه تک سپين مرغان الوزي او يوې نامعلومې خواته الوتنه کوي.ماشوم وروړمې هم په خندا خندا کې مورته وايي:

ـــ زما خورې مورکې نکريزې ژر ژر خيشتې کړه.

مور مې بې له دې چې هو وو ايي نکريزې را اخلي .په ميده شوو نکريزو کې لږې شړومبې هم ګډوي .نکريزې خيشتوي او بيا زما دوړو وروڼو او خويندو لاسونه پرې سره کوي .مورمې ما ته په ژيړو غوړيو کې ډوډۍ وړه کړې وي او يو يو شخوند په خوله کې راکوي.زه په خنداکې ورته وايم:

ـــ مورجانې ستا له لاسه ژير غوړي څومره خوند کوي !پام کوه هسې نه چې ګوتې دې ورسره وخورم!

مورته مې هيڅ خندا نه ورځي . کشری وروړ مې مورته وايي :

ـــ خورې مورې ! پر لاله باندې هم لاسونه سره کړه .

دمور له سترګو نه دوه څاڅکي اوښکې په ژيړو غوړيو کې څڅيږي .زه مې دمورپه لاس جوړ شوی شخوند تيروم خو داځل يې دبارو تو خوند وي.

۱/۲/۱۹۹۵ پېښور دروژې دويمه

# سندرې او مرغلرې

عشق زما په روح کې پټ دی . عشق زما د شعرونو روح دی .دامهمه نه ده چې هره معشوقه دې خپل مین وپیژني .د یوه هنرمندپر هنر به په ملیونونو خلک مین وي ،په دې مینانو کې به داسې مین هم وي چې د هنرمند له هنر سره به دعبا دت تر سرحده مینه ولري خو هنرمند به خپل مین په خوب کې هم نه وي لیدلی .دمعشوق دابې خبري د مین مقام په هیڅ صورت نه راټیټوي. یوازې خدای دی چې خپل ټول مینان له (الف )نه تر (ی) پورې ټکي په ټکي پیژني .خدای لا یتناهي ښکلا او لا یتناهي وخت لري. دئ په یوه وخت کې بې حسابه مینانو ته ځان رسوي.ده په ټولو رنګونو کې خپله ښکلا ګډه کړې ده.

ته څه فکر کوې هغه اواز چې روح لکه ماشوم د زیروبم په زانګو کې للو للو کوي کوم جوړوونکی نه لري ؟!دامنم چې دموسیقۍ استادان به خپلو شاګردانو ته دموسیقۍ سرګم ورښیي خو دسحر تورې بلبلې ته دلاهوتي سندرو سرګم چا ورښودلی دی ؟

زه ډیر ځله په ډیرو ښکلاوو مین شوی یم ،داډیرې اوږدې کیسې دي

زه پوهیږم چې ته دومره وخت نه لرې چې زما دهرې مینې کیسه واورې. زه نن ستا پرمخ دخپل زړه ور پرانیزم او په یوه پټ راز دې خبروم. ته راته غوږ شه، زه له تانه یو سوال کوم.

ــ ته دګڼ ځنګله له هغې تورې بلبلې سره څه نسبت لرې چې ما ته یې په ماشومتوب کې لاهوتي سندرې ویلې؟

زه پوهیږم چې زما پردې پوښتنه به ډیره حیرانه شوې وې. ته پرما دلیوني ګومان مه کوه، زه لیونی نه یم. ته مې لا لیدلې هم نه وې چې دځنګله دهغې تورې بلبلې استعاره مې بللې. اوس به موسکه موسکه کیږې او وایې به چې پر لیوني دشعر پیریان راغلي دي. ښه پردې خبرو دې چې سر نه خلاصیږي اوس نو ښه راته غوږ شه، ستا کیسه پریږدم او دځنګل دتورې بلبلې کیسه درته کوم.

ــ زه عجیبه خوبونه وینم. زه کله کله په ویښه هم خوبونه وینم. داهم دیوه خوب کیسه درته کوم. نه پوهیږم چې ما داخوب په خوب کې لیدلی وا که په ویښه؟ غوږ دې دی؟!

ــ ډیر کلونه وړاندې چې زه یو کلن ماشوم وم دیوه ګڼ ځنګل په لمن کې له خپل مور او پلار سره په یوه اغزنه جونګړه کې اوسیدم. موربه مې تر نیمو شپو راته ویښه ناسته وه، په خواږه اواز به یې الاهو للو للو راته ویل. چې ښه ډیر الاهو للو للو به یې راته وویل نو ژړا به مې غلې شوه او دخوب خوږه غاړه به مې پیل کړه. زه به دمور په الاهو للو اوده شوم او مور به مې زما دخوب په ماشومه غاړه دچرګۍ پر غاړه اوده شوه. زما دزانګو پری به یې همداسې له لاس نه تاو کړی و. کله کله به یې په خوب کې هم ټالۍ راکړې. ما خوبه تیوله ورځ هم په خوبونو تیره کړې وه، دشپې به په اومه بانه راویښیدم. تنکی بدن به مې له ګلدارو وړیو نه جوړې شوې سوزنۍ تغمې تغمې کړ، بیا به راویښ شوم او ژړا به مې پیل کړه. په ژړا به مې مور لانه وه راویښه شوې چې ژړا به مې غلې کړه. یو

بل خوږ اواز به مې ترغوږ شو .دا اواز دګڼ ځنګله له منځ څخه راتلو ،د تورې بلبلې اواز و .زما دمور دالاهو للوللو غوندې خوږ و. کټ کټ وبه مې خندل .بلبله به له ځنګله نه راغله او زموږ دجونګړې پر یوه اغزنه څانګه به کیناسته.دالاهو للوللو پرځای به یې راته خوږې او ملکوتي سندرې پیل کړې .دې سندروته به داوبه خوراوبو دورا دنجونو غوندې چمبې وهلې .دسپوږمۍ پلوشې به زموږ دجونګړې له سوریو نه راتیرې شوې او زما سترګې به یې بریښولې .مابه کټ کټ خندل .له مانه راتاوشوې سوزني به سسته شوې وه او په سوزني کې تړل شوي لاسونه به مې راخلاص کړل.لاسونه به مې اخوا دې خوا اچول او په ورو ،ورو منګولو کې به مې دسپوږمۍ پلوشې رانیوې. دبلبلې لاهوتي غږ ،دسپوږمۍ پلوشو ،داوبه خور مستو چمبو ،دځنګل شاعرانه زمزمو اوسرو کوورمو په ګډه تخنولم.کله به یې خوب رانه تښتاوه او کله به یې غلی اوده کړم .موږ ټول یو پربل مین وو.

ډیر کلونه کیږي چې له هغې رنګین اوملکوتي خوب نه راویښ شوی یم خوهغه ښکلا مې دراز دغوټې په څیر دروح په پیشکه پورې تړلې ده .ګوره چې نور څوک درنه خبر نه شي .نن دادراز غوټه ستا لپاره سپړم .

زه ورو ،ورو رالوییدم ،چې څومره رالوییدم دومره دالاهو للوللو اودځنګله د تورې بلبلې له لاهوتي نغمونه لرې کیدم .بیا دومره لرې لاړم چې دبلبلې غږ مې هم نه اوریده .په دې دې هم سر نه خوږوم چې زه بیا وروسته له ډیرو کلونو څنګه غرونو ،ځنګلونو او دبلبلو دسندرنو وطن ته راغبرګ شوم.داهم اوږدې کیسې دي ،ډیر پیچومي او کږلیچونه لري.زه نه غواړم چې ستا دتنکي اونازولي تخیل پښې په دومره اوږدو پیچوموا و کږلیچونو کې تناکې کړم.

ته پوهیږې چې ما په غرونو ،ځنګلونو او دبلبلې دسندرو په وطن کې څنګه ژوند تیرا و ه ؟داخل دځنګله د تورې بلبلې لاهوتي سندرو دماشوم

غوندې نه خندولم .داوبه خوراوبو دمستو چمبو پرځای دوير سرودونه غږول. دځنګل زمزمې دغوځو ښيريو اوغوځو ښبترو له ويرنو ډکې وې دسندرو دوطن په آسمان کې پولادي شاهينان ګرځيدل .دډيرو شاهينانو مښوکې دبلبلو دسندرو په وينو سرې وې.ډيرې ناسپړلې غوټۍ له ګل کيدو نه مخکې رژيدې .ته پوهيږې چې ژوند څومره بدرنګ شوی و .زما ښکلا پرست روح ته دبَدرنګۍ ديوانو بدرنګې او کرغيړنې خولې وازې نيولې وې .دلته دښکلا دښا پيريو وزرې سوځيدې .زما دوجود ټوله سيمه دبدرنګۍ دديوانو په لاس کې وه .يوازې عشق و ،چې دبدرنګۍ پر ضد دبغاوت په تور يې په زخمي لاسونو کې دبدرنګۍ زنځيرونه اچول شوي وو .زما ټول وجود بوږنيده او مادبدرنګۍ يو کوچنی مښود هم نه شو زغملی. نژدې وه چې زما زاره وچوي. هغه لوی جمال پر ما څومره مهرباني وکړه چې ستا خوږ غږيې د هواد څپو پر اوږو راوړ ، يو غيبي او ملکوتي غږ. کټ مټ د هغې بلبلې د غږ په څېر، چې ما ته يې په ماشومتوب کې سندرې ويلې. لکه چې لوی خدای ستا ټوله ښکلا په يوه سندره کې غوټه کړې وه او دا غوټه يې د يوې تورې بلبلې په روح کې پرانستي وه. زما عشق ستا د ښکلا د سندرې په اوريدو د بدرنګۍ ټول زنځيرونه وشلول، د بدرنګۍ ټول ديوان يې مات کړل او بيا زما د وجود په قلمرو کې د ښا پيريو وزرې نه سوځيدې. ته زما د تخيل ځنګل ته د يوې تورې بلبلې په جامو کې راتلې. ما ستا لپاره د خپل ژوند په لويه د ښته کې د عشق د ګلونو تخمونه وشيندل دا ګلونه ورو ، ورو را لو ييدل، په څو کلونو کې يې غوټۍ وکړې او له شپږو اوو کلونو وروسته يې ګلونه وغوړيدل.

اوس نو زما مينه او تلوسه بيخي پخه شوې وه. اوس مې ستا په تصوير يعنې د ځنګل په هغې تورې بللې چې په روح کې يې ستا د سندرو غوټه پرانستل شوې وه هم مينه نه ماتيده. دا زما د ليونۍ مينې

مجبورې وه چې زه په تا پسې راشم. ماستا د تصویر ونو وطن پرېښود. ما د بلبلې وطن غرونه او ځنګلونه پرېښوول او ستا په اصل پسې ښارونو ته راغلم. ما ستا د پټې مینې په نوم په ښار کې هم ډېره موده تېره کړه خو ته مې ونه لیدې.

ته پوهېږې چې د اصل او تصویر تر منځ د بېلتون ژوند څومره سخت دی؟ زما د ژوند د لویې دښتې ګلونه سره اورونه شول. ماهمیشه ستا لټون کاوه چې ودې وینم او داورونو ګلونه دې په غېږ کې وشیندم. خدای شته چې همیشه مې یا دولې، کله ستا تصویر چې په غرونو او ځنګلونو کې له تورې بلبلی سره پاتې و او کله هم ستا اصل چې زما د اوسیدو په لوی ښار کې رانه ورک و.

توبه مې دې وي خدایه! کله بر چې په لمانځه ولاړوم. هم په خیال کې به مې ته ګرځیدې. د روژې د مبارکې میاشتې د ماسپښین پرلمانځه ولاړ وم چې په زړه کې راوګرځیدې. رکوع ته لاړم، سجدې ته لاړم، په لمانځه نه پوهیدم خو ته مې په زړه راوریدې. زه دویمې سجدې ته لاړم چې د خپل زړ ګوټې له درزا سره مې د چا د پښو خوږه ښکالو هم واوریده. ما سلام نه و ګرځولی چې ته راغلې او په ډېر ادب کښیناستې. ښې خواته د سلام ګرځولوسره سم مې پر تا سترګې خوږې شوې. ستا رنګ د ځنګل تورې بلبلې ته نژدې و. ته دومره ښکلې نه وې لکه څومره چې ما د خپل تخیل په سندریز قلم انځور کړې وې. خو ستا سندریز تصویر زما روح ،زما زړه اوزما سترګې دومره ښکلې کړي وو چې ته را ته ډېره ښکلې وبریښیدې. ته به کله کله راتلې او ما به ستا په اصل ستا د تصویر مینه ماتوله. اوس مې ستا په تصویر زړه سوځیده. اوس مې د هغې بلبلې هجران ګاله چې ماته یې سندرې راوړې. ته یوه ورځ راغلې غتې غتې او تکې تورې سترګې دې د ځنګل د هغې تورې بلبلې غوندې له سندرو نه ډکې وې. تا دوه درې واره خپلې تورې غتې، غتې سترګې خوږې،

خوږې او درنې، درنې راپورته کړې. په دې وخت کې ستا سترګې دوو پیغمبرانو ته ورته وې چې په تکو تورو وریښمینو جامو کې پرتکو سپینو براقونو سپاره، نوي نوي د ښکلا له خدای نه راغلي وي. خو نه پوهېږم ته ولې داسې ژړېږې سندرو شوې. ته زما د ژوند د لویې دښتې د عشق داورنیو ګلونو یوه پاڼه هم په خپله غېږ کې نه شې زغملای. ته په دې اورنۍ دښته کې یو ګام هم نه شې اخیستی. ستا پښې لو لپه کېږي.

هغه ورځ مې ولیدې چې لپه دې له مرغلرو ډکه وه خو د روح څولۍ دې له سندرو تشه وه. د ځنګل د تورې بلبلې په سندرو کې ستا د تصویر یوه سندره هم نه وه پاتې. زه پوهېږم چې ته اوس ډېره ښکلې شوې یې خو زما شاعرانه او لیونی عشق درته ګوري هم نه، ځکه چې مرغلرې ډېرې لرې او سندرې هیڅ نه لرې.

پېښور ۱۳۷۲/۸/۲۸

# د کوه قاف دیوان

خلک به په خوږو خوبونو ویده وو ، خو د غنچې ابۍ په جونګړه کې به همداسې د یوه بلیده. ابۍ به تر نیمو شپو سندرې ویلې. د هغې اوا زخوږ او له درده ډک و .که په شاوخوا کورونو کې به ماشومانو ژاړ پیل کړه نو میندو به د ابۍ په سندرو غلي کول.

اوس ابۍ پر ټول کلي ګرانه وه.اوس چا غنچه نه بلله ،لویو اووړو به ابۍ بلله.ابۍ اوس زړه شوې وه او ددې دځوانۍ کیسې هم زړې شوې وې .دځوانۍ دوخت ګناهونه یې زاړه شوي او دهیریدو په ګردونو کې پټ وو. په پیغلتوب کې یې یو پټ مینتوب تیر کړی و. هغه دکلي په یوه ښایسته ځوان شین ګل مینه وه.

غنچه خپل پلار په یوه لرې کلي کې واده کړه .له واده نه څو کاله وروسته یې میړه مړ شو .له لیوورونو سره یې ژوند نه تیریده .دوباره یې له شین ګل سره لاره جوړه کړه او یوه شپه دشین ګل کره راو تښتیده.له شین ګل سره یې خوږ ژوند پیل کړ. کله کله به چې دچم ګاونډ ښځو له غنچې سره جنګ وکړ غنچې ته به یې پیغورونه ورکول او ورته ویل به یې

چې ميني مرداري.

غنچې به شونډې بوڅې کړې او دچا پيغور به يې په پيغور ونه باله. په يو ډول فاتحانه اندازبه خپل کورته راغله او شين ګل ته به يې غيږه ورکړه ،په خندا خندا به يې ورته ويل :

ـ شين ګله ، نن يې بيا ستا پيغورونه راکول ،راته ويل يې چې ميني مرداري .شين ګل به تسله ورکوله او ورته ويل به يې:

ـ څه چې وايي ،وايي دې ، زه اوته بې له خدايه دچا څه پروا لرو .بيا به دواړه له خندانه شنه شول او دټولې دنيا په پيغورونو به يې ملنډې ووهلې .

هغوی دواړو خوشحاله ژوند تيرولو .چې شين ګل به په ځمکه کې يوې کوله غنچې به دشين ګل ټوپک له ځان سره نژدې ايښی و .ځاربه يې کاوه چې شين ګل څوک ونه وژني .دوی څوکاله يو ځای تير کړل .ددوی به سر پر سر لونې پيداکيدې .يوه ورځ شين ګل ورته وويل :

ـ غنچې! کاشکې خدای يو زوی راکړی وای که بيا يې زه وژلی وای هم ارمان به مې نه وای .غنچې ورته وويل:

ـ ته ليونی خبرې مه کوه ،مرګ اوژوند دخدای په لاس کې دی .که يې زما په تور ووژلې زه به پر تا باندې زيارت جوړ کړم او ستا دزيارت منجاوره به شم چې ستا پر قبر مې ووژني.او که دواړه يې ووژلو قبرونه به مو څنګ په څنګ وي او په اخرت کې به سره يو ځای وو.

ـ غنچې ،په خدای قسم خورم چې ما ووژني زه به خوشاله شم يوخو به زما په بدو کې زما وريرونه نه سوځي او بل به داخرت له عذاب نه خلاص شم .

غنچې ته په دې خبرو قهر ورغی:

ـ دا ډارنې خبرې مه کوه !يو کوری غوښې او هډوکي څه په جنت کې څه په دوزخ کې .څوک له هغې دنيا نه راغلي دي خدا ی به له چانه

راضي وي ؟ تاخو جاريږي شم قران شريف هم ويلی دی په دي خبرو نه پوهيږي ؟ زه خو کوندېه ښځه وم چې تا ته راغلم. زه خو څه ميړو ښه نه وم ماله ملا نه پوښتنه کړې ده.

شين گل د غنچې خبرو ته په ډير غور غوږ ونه نيولی وو:

ــ ښه نو ملا څه درته ويل ؟

غنچې له نازه ځان په غوسه کړ:

ــ ته خو مې خبرو ته پريږده چې زه د ملا خبره درته کوم ، ته بيا په خبرو کې راولويږې. تا ته ځان د نکلونو ادم خان ښکاري، څومره به ځان ته غره وې چې غنچه پر ما مينه شوې وه ،له ډيرې مينې نه ليونۍ شوې وه او زما کره راغله .

له دې خبرو سره غنچه له خندانه شنه شوه:

ــ شين گل به له دې نه نه وي خبر چې دا د نصيب او قسمت چارې دي کنه غنچه چيرته او شين گل چيرته ؟ ؟

شين گل هم له خندانه شين شو:

ــ ښه، دا د نصيب او قسمت چارې دي ؟ نصيب خو زين کړی آس دی چې واگې يې ستا په لاس کې دي ،هر چيرې يې چې بيا يې ځی. چې غنچه د نصيب پر زين کړي آس د شين گل کره راغله نه پوهيږم چې دې کارته څه ووايم ؟ زه خو وايم چې راځه د دې کار پوښتنه هم له ملانه وکړو.

پردې خبره دوی دواړو دومره سره وخندل چې خندا وې يې په کوڅه کې واوريدل شوې. په کوڅه کې ناستو ښځو يوې بلې ته سره وکتل يوې ښځې وويل.

ــ دا څه بې شرمه ښځه ده! دومره خندا . . . . . . .

يوې بلې ښځې وويل:

ــ وی خورې ته هم ليونۍ يې ، هغه متل دې نه دی اوريدلی چې : په

ویاله ټوپ وکړي لښتی څه شی وي؟
شین ګل بیا غنچې ته مخ ور واړ ولوا وورته ویې ویل:
ــ ته هم له ځانه دنکلونو در خانې مه جوړوه، دومره نازونه مه کوه، دا ووایه چې ملا څه درته وویل چې د زړه غوټه مې خلاصه شي.
غنچه موسکه شوه:
ــ درته وایم یې شین ګله، ته مه وار خطا کیږه:
ــ کله چې زما میړه مړ شونو لیورو نو مجبورولم چې په دوی کې له یوه سره نکاح وتړم. دې کار ته زما زړه نه کیده، زه به دوی وهلم او ټکولم. یوه ورځ یې په ډیرو وهلو لاس را باندې مات کړ. یوه شپه مې نیت وکړ چې غاړې ته زندۍ واچوم، بیا مې کلیمه وویله ماوې چې دوزخ ته به لاړه شم. بله ورځ مې د کلي له سپین ږیري ملانه په چل چل کې پوښتنه وکړه چې لیورونه مې همیشه وهي ترټي او راته وایي چې په موږ کې له یو سره نکاح وتړه.
ملا صاحب اول زما په خبره په سوچ کې لاړ وروسته یې راته وویل:
ــ لورې! په شریعت کې پر کونډه ښځه باندې ظلم کول ډیر ناروا کار دی. د کونډې خوښه ده چې له هر چا سره یې زړه غواړي نکاح وتړي.
بیا ملا صاحب د نصیحت په ډول راته وویل:
ــ ګوره لورې! په دوی کې دې چې له هر یوه سره زړه وي نکاح وتړه، چې اولادونه دې پیدا شي انشاء الله ژوند به دې ښه شي.
دا د پښتو دود دی بیا به خلک پیغورونه در کوي.
ما ته ملا صاحب ډیر نصیحتونه وکړل خو ما د نصیب نیلی زین کړ او واګې مې یې د شین ګل په لاس ورکړې. د دوی خندا بیا په کوټه کې خوره شوه او یو ځل بیا په کوټه کې پنډو ښځو یو ې بلې ته سره وکتل.
شین ګل غنچې ته وویل:
ــ په خوله دې برکت شه زما پر زړه خووریځې پنډې وې اوس مې ایله

زړه سپک شو.

شین گل له ځایه را پاڅید په سترګو کې یې عجیبه ځلا بریښیده. د غنچې پر مخ د حیا سره راغلل او په موسکا یې وویل:

ــ څه کوې شین ګله لیونی شوی خو به نه وې؟

شین ګل په ترتړی ژبه وویل:

ــ لیونی خو نه یم خو......

خبره یې نیمګړې پریښوده. غنچه یې کلکه په غیږ کې ونیوه او پر مخ یې سخته ښکل کړه. غنچې ورته وویل:

ــ په دی سپینه ورځ... لیونی شوې شین ګله!

شین ګل داځل په زړ ورتیا ورته وویل:

ــ ولې لیونی شوم؟ څه غلا خو نه کوم، همدا اوس دې د ملا صاحب مسئلی راته ونه کړې...

د شین ګل او غنچې ژوند د یوې نه تما میدونکې مینې په غیږ کې تیریده. دوی دواړو به د ځمکی کارونه په ګډه کول. څنګ په څنګ به یې لوونه کول. چې شین ګل به یوې کوله غنچې به ماله کوله، د پټیو تر منځ پولې اوبریدونه به یې غړل. کله کله به یې د شین ګل ټوپک په غیږ کې ایښی و او څار به یې کاوه چې شین ګل څوک ونه وژنې.

د اوړي تکنده غرمه وه د شین ګل ټوپک په پټي کې د ولاړې ونې په شاخ کې را ځوړند و. شین ګل او غنچې د غنمو لوونه کول. د غنچې د بنګړو شرنګاه خوره وه. کله کله به د بنګړو د شرنګا په منځ منځ کې د شین ګل او غنچې لرونه له یو بل سره ولګیدل او د بنګړو پر شرنګا به یو بل شرنګ هم ور زیات شو. ناڅا په د ټوپکو ګنې ډزې و شوې. غنم په وینو سره شول. غنچې کړیکه وکړه شین ګله!... په پورې هورې غرونو کې انګازه شوه: شین ګله... انګازه ورو ورو غلی شوه، د غنچې د کمیس پرلمنه اور بلیده. شین ګل نری زګیروی کاوه. لوریې له لاس نه

لویدلي و او د غنمو پر کوده یې سرا یښې و. له غنچې نه لاس او پښې ورک شول. د کمیس اور یې مړ کړ او شین ګل یې په غیږ کې ونیو. د مخامخ غونډۍ خواته یې له ډیره قهره سترګې واړولې. د شین ګل ټوپک یې دونې په شاخ کې ولید. د شین ګل سرېې غلی د غنمو پر کوده کېښود لکه لیونۍ د ټوپک خواته په منډه ورغله ټوپک یې راواخیست او د غونډۍ پر خوا یې ګنې ډزې وکړې. ډزو یې ویروونکې او غم انګیزه انګازه خوره کړه. څو شیبې وروسته کلیوال راورسیدل ځینې کلیوال د شین ګل په دښمنانو پسې په چیغه لاړل او ځینو شین ګل په کټ کې راواخیست.

د شین ګل په لاس او ټټر کې مردکي لګیدلي وو. شین ګل یې د اوښ په شا د کلي له غرونو اخوا واړاوه او یوه لرې ښار ته یې ورساوه. هلته یې په پټه علاج پرې کاوه چې د ښمنان یې له ډاکټرانو سره لارې جوړې نه کړي او د مرګ زهر په دوا کې ور نه کړي.

څو میاشتې وروسته شین ګل یوڅه ښه شو خو هغه پخوانۍ مزه یې نه وه. یو لاس یې هم ګوډ شو. د ځمکو کارونه یې ټول غنچې ته پاتې شول.

شین ګل له یوې ورځې نه بلې ته کمزوری کیده او دوه کاله وروسته یې له دنیا نه سترګې پټې کړې. غنچه یوازې د الله هیلې ته پاتې شوه. د شین ګل و ریرونو په نژدې کلو او هدیروکې پسونه حلال کړل. ننواتې او جرګې یې وکړې چې د شین ګل دښمنان نرخ ته ور سره کینوي. د نژدې کلو مشرانو د شین ګل دښمنان نرخ ته ورته کینول. د شین ګل وریرونو او عزیزانو د شین ګل پر دښمنانو داسې دعوه وکړه چې ګنې شین ګل د دوی د ټوپکونو له مردکیو کمزوری شو او د همدې مردکیو له امله مړ شو. مقابل طرف په ځواب کې ویل چې له موږ نه یې ښځه بیولې ده او په ښځه کې نرخ کول تاسې و ګورئ چې څنګه خبره ده؟ بله خبره داده چې

زمور پر دوی باندې د ښځی د بیولو په بنیاد یو مړی پروت دی. دا ربښتیا ده چې مور خپل غچ له شین گل څخه اخیست خو شین گل زمور له خوا له زخمي کیدو نه دوه کاله وروسته پر خپل مرگ خدای مړ کړ. که بیا هم دوی وایي چې زمور له خوا مړ دی دوی دې په تور او سپین اووه قسمونه راته وکړي مور به له خپل مړي تیر شو او یوه پرده به مو جوړه شي. که بیا دوی او د دوی نژدې تربوران پر غوړیدلي قرآن اووه قسمونه نه شي راته کولی بیا خو معلومدار له مور سره کبر کوي. له دې پرته مور هیڅ نه وایو او مور بې وسه یو. که وس مو پیدا کړ د خپلې ښځې پر سر د مړي پوښتنه به وکړو...

جرگه ناکامه پاڅیده او لانجې لاکنجونه پیدا کړل. اوس به د غنچې پر سر د شین گل وریرونه هم ویریدل او آزاد به نه شول گرځیدای. د دوی تولو چلند له غنچی سره ډیر بد و. دغنچې د عمر کاروان گړندی گړندی د زړبودي پر لور روان و

* * *

له غنچې نه زړه ابی جوړه شوه. دوختونو خزان د غنچی د ښکلا بڼ تالا کړ، لونه یې واده شوې ځمکه یې میراث خورو ته پاتې شوه. د لونو د ولور په پیسو به یې ژوند تیراوه. د شپې خوب یې نه و، شپه به یې په غمجنو تپو او سندرو رونوله. ډیر وخت به یوه اته کلنه نجلی په جونگړه کې ورسره ناسته وه. نجلی د ابی د میراث خورو لور وه. د نجلی نوم غوړگه و. د غوړگې مخ سور او سپین او ښایسته غټې سترگې یې لرلې. هغه ډیره شوخه وه. چې کله به یې کومه شوخي وکړه ابی به ښیرې ورته کولې، ښیرې یې د ناز ښیرې معلومیدې او د بد زړه نه نه وې:

ـ ځوانی ته مه ورسې. ته په تبرونو غوڅه غوڅه شې.

چې لاس به یې ورپسې ورسیده په مخ به یې څپیړه ورکړه. غوړگې به کټ کټ وخندل د ابی په غاړه به یې لاسونه تاوکړل، ابی به یې د چرگی

پر غاړه راځملوله. غوږګي به ورته وویل:

ــ څنګه شوې دومره زور خو نه لرې.

ابۍ به زارۍ ورته وکړې:

ــ بس دی لورې پرې مې ږده ته خو مې خوږه لورېې ښایسته هلک به درته کوم.

غوږګي ته به بیا قهر ورغی ،د ابۍ پر مخ به یې وروغاښونه ولګول:

ــ ښه نه یې درته کوم بس دی لورې نوره به جوړه سره وکړو .

بیا به دواړه سره جوړې شوې. غوږګې به ابۍ ښکل کړه او ابۍ به د غوږګې پر سر لاس تیر کړ:

ــ ابۍ دې جارشي ته خو زما ښکلې پیشو یې پیشو.

یوه ورځ دوی بیا شور جوړکړی و. د غوږګې مور چې د دوی شور واوریده په منډه منډه ورغله. د جونګړې په دوروازه کې یې ور غږ کړ:

- غوږګې! وه غوږګې!

غوږګه د غوا په اخورکې پټه شوه. د غوږګې مور نیغه جونګړې ته ورننوته. په ترخه لهجه یې ابۍ ته وویل:

-غوږګه څه شوه ؟

ابۍ ځواب ورنه کړ. غوږګه په اخورکې له خندا نه شنه شوه. مور یې وریسې ورغله له لاس نه یې ونیوه او پر مخ یې سخته څپیړه ورکړه:

ــ چې ابۍ څه کوډې دربانده کړې دي:

غوږګې شونډې بوځې کړې، د مور پیښې یې وکړي:

ــ کوډې دربانده کړې دي.

غوږګه یې په کشولو کشولو د ابۍ له جونګړې را وایستـه ورته وېې ویل:

ــ که بیا دلته راغلې وې غوږونه به دې غوڅ کړم غوږونه پوه شوې ؟!

غوږګې په ژړغوني اواز وویل:

ـــ راځم بیا راځم!

یوه ګړۍ وروسته بیا د ابۍ جونګړې ته راغله. ابۍ ژړل او هیڅ خبرې یې نه کولې. غوړګې د ابۍ له غاړې نه لاسونه تاو کړل:

ـ ابۍ ولې ژاړې؟

ـــ لورې سر مې خوږېږي.

بیا غوړګې ورته وویل:

ـــ ابۍ ګلې ما ته د ښاپیریانو کیسه وو ایه.

ابۍ یې له زنې نه ونیوه، ابۍ خبرې نه شوې کولای او سلګۍ یې وهلې:

ـــ ابۍ ګلې کیسه خو راته وایې کنه!؟

ـــ ابۍ دې جار شي د ښاپیریانو کیسه خو دورځې نه ویل کیږي د ښاپیریانو کیسه خو دشپې ویل کیږي، څوک چې د ښاپیریانو کیسه دورځې وایي بیا دیوان ور پسې راځي اوکوه قاف ته یې وړي تا به هم دیوان کوه قاف ته را نه یوسي. پوهیږې چې زه هم دیوانو کوه قاف ته وړې وم، د اوسپنې په پنجره کې یې بنده کړې وم، په څه خوارۍ مې پنجره ماته کړه او را وتښتیدم.

بیا غوړګې ورَته وویل:

ـ ابۍ تا به هم دورځې د ښاپیریانو کیسې اوریدې؟

ابۍ ترخه خندا وکړه:

ـــــ هو لورې.

غوړګې بیا زارۍ ورته وکړې:

ـــ مه کوه ابۍ ګلې کیسه راته وو ایه که دیوانو یووړم زه به هم تا غوندې د اوسپنې پنجره ماته کړم او را وبه تښتم.

ابۍ وخندل او ویې ویل:

ـــ لورې ته خو کوچنۍ یې ته هغه کلکې پنجرې نه شې ماتولای، زه

چې ښه ځوانه وم هم په څه خوارۍ مې پنجره ماته کړه او په توره شپه کې راوتښتیدم. که دیوانو لیدلې وای زما وینې به یې غړپ کړې وای.

دغوړګې په خیال کې تور دیوان ورغلل، یو څه وویریده خو دکیسې داوریدلو تلوسه یې مړه نه شوه او په سوچونو کې لاړه. ناڅاپه له خندانه شنه شوه، دخوشحالۍ چک چکې یې وکړې او ویې ویل:

ــ ابۍ په یاد مې شوه ددرخانۍ کیسه راته ووایه، په هغې کې خو دیوان او ښاپیریان نه شته

ابۍ یې پر سر لاس تیر کړ:

ــ لورې سر مې درد کوي چې دسر درد مې کرار شي بیا به یې درته ووایم، اوس ورځه کورته لاړه شه مور به دې بیا وهي.

غوړګه خپل کورته راغله، دبوسو کوټې ته ننوته، دپښو دګوتو پر سرونو په کوټه کې غلې غلې ګرځیده، یوشی یې دکمیس په لمنه کې پټ کړ. له کوټې راووته او دنژدې کوځې دکاندار ته ورغله. دکمیس له لمنې نه یې هګۍ راوایسته په وړه ژبه یې دکاندار ته وویل:

ــ دسردرد ګولۍ غواړم.

دکاندار دوې دانې په کاغذ کې بندګولۍ ورکړې. غوړګه په منډه منډه دابۍ کره ورغله. سا یې بنده بنده کیده. په ډیرې خوشالۍ یې ابۍ ته وویل:

ــ ابۍ ګلې دادې دسر درد ګولې مې درته راوړې دي. دبوسو په کوټه کې مې دچرګې هګۍ پټه کړه تاته مې ګولۍ پرې وکړې اوس یې وخوره سر به دې دستي ښه شي. دا اصیلې ګولۍ دي چې مورته مې څه ونه وایې!

ابۍ غوړګه په غیږ کې ونیوه ښکل یې کړه.

ــ ابۍ دې جار شي په دې وړو وړو خبرو ته مې څومره هوښیاره لورې.

ابی، له توري کتیوې نه برغولی جګ کړ، دوې دانې هګۍ یې راواخیستې :

ـ غوړګې لورې داواخله یوه هګۍ په هماغه ځای کې کیږده چې تا هګۍ ځینې را اخیستې وه او پربله هګۍ له دکاندار نه خواږه درته وکړه زه به ستا ګولۍ وخورم چې سر مې ښه شي بیا به ډېر نکلونه درته وایم. ښه ابی، دې جار شي !دا خوله دې رانژدې کړه چې ښکل دې کړم.
غوړګه یې ښکل کړه .غوړګې هګۍ را واخیستې او دابی، له جونګړې راووته.

*** *** ***

داڅو ورځې ابی، ته سختې اندیښنې ورلویدلې وې .کوڅې ته هم نه راوته او له چاسره یې ډېرې خبرې هم نه کولې .دجونګړې درواز یې په ځان پسې تړلې وه .هغه یوه پټ غم ځوروله .ژوند ورته دد یوانو پولادي پنجره ګرځیدلی و. کله کله خوبه یې په زړه کې وروګرځیدل چې دا پنجره هم ماته کړي او له دې پنجرې نه هم چیرته لرې وتښتي .
له جونګړې نه راووته ،چوپه چوپیا وه ،خلک په خوږو خوبونو ویده وو .پړی یې راواخیست ،دجونګړې په چت پورې یې وتاړه ،غاړې ته یې کړی، جوړه کړه ،ناڅاپه یې په زړه کې څه وروګرځیدل ،کلیمه یې وویله او کړی، یې له غاړې نه لرې کړه اودس یې تازه کړ ، له تاخ نه یې دشین ګل قران شریف ور واخیست ښکل یې کړ. ټوله شپه یې نفلونه وکړل .دنفلونو ثواب یې په شین ګل پسې وباښه.سهار یې خپل زوړ صندوق پرانیست .دشین ګل نښې اوځینې نور کالي پتري یې په خپله زړه بوخڅه کې سمبالول چې ناڅاپه غوړګه جونګړې ته ور ننوته .دغوړګې سترګې په پرانستي صندوق کې پر لونګینو ځونډیو ولګیدې.
ـ ابی، ګلې داځونډې دچا دي ؟
ـ غوړګې لورې دامې تا ته ایښي دي .کلیمه داري روپی، مې هم

درته ایښې دي . دازما دناوې توب کالي پتري دي .

کلیمه دارې روپۍ او ځونډې یې غوړګې ته ورکړل . دغوړګې زړه ښکې وکړې داهرڅه یې کورته یووړل اوپرخپلو هغو نویو جامو یې ټک وهل چې نوي نوي یې پلار ورته راوړې وې . شیبه وروسته یې له ځونډیو ،کلیمه دارو روپیو او لونګینو ځونډیو ډکې جامې واغوستې . کلیمه دارې روپۍ اولونګین ځونډې یې پر تنمر راځړیدل اوله وړو وړو جینکو سره مشغولیده . جینکو به چې دغوړګې ښایسته جامو ،کلیمه دارو روپیو ،او لونګینو ځونډیو ته کتل له غوړګې سره به یې رخه کیده . په زړونو کې به یې ویل :

ــ کاشکې زموږ هم داسې ښایسته جامې وای .

نن ورځ پر غوړګه باندې له ډیرې خوشحالۍ نه دسترګو په رپ کې تیره شوه خو دابۍ لپاره دکال غونډې اوږده وه . مازدیګر مهال ابۍ ژړ ژړخپل سمبال شوي کالي په بوخڅه کې ځای په ځای کړل . غواته یې په زاړه دیګ کې اوبه کیښودې . له چت نه په راځوړند پړي یې وس وکړ خو خلاص نه شو ،همداسې یې پریښود . دشین ګل قران شریف یې ښکل کړ . له جونګړې نه غلې راووته ،دکلي دهدیرې پر لاره روانه شوه . دکلي او هدیرې پرسر دلمر وړانګې غم انګیزې په نظر ورغلې . دشین ګل قبر ته ورغله او پر قبر یې سرولګاوه ،دعاوې یې وکړې ،پر قبر یې روپۍ وشیندلې . ښه ډیرې وژړل . کله یې چې زړه یو څه سپک شو نو دغرغرې دلمر دغم انګیزو وړانګو په غیږ کې وارخطا وارخطا له غرونو اخوا دیوه لرې کلي پر خوا روانه شوه .

نن شپه ټول کلی په یوه غمجنه چوپتیا کې ډوب و . دابۍ سندرې نه اوریدل کیدې . ابۍ دخپلو ټولو سندرو په مرګ کې زندۍ اچولې وه . نن شپه دکلي ماشومانو ژړل . هغوی دمیندو په بانو نه غلي کیدل .

غوړګه له ډیرې خوشحالۍ نه له جامو سره په کټ کې څملاستنه . له

لونګینو ځوندیونه دغنچې د پیغلتوب بوی ورتلو .سهار په لمر ځرک غوړګه له خوبه راپاځیده ،نکریزې یې په لاسونو پورې وچې شوې وې .لاسونه یې په کوچو غوړکړل اوسره شغله یې وکړه .دابۍ جونګړې ته ورغله چې په نکریزو سره لاسونه ابۍ ته وښیي .جونګړې ته ورننوته ،دابۍ غوا رمباړې وهلې .په چرګۍ کې اورنه بلیده او ابۍ په جونګړه کې نه وه .غوړګه وویریده او په منډه منډه خپل کورته راغله .خپلې مورته یې وویل چې ابۍ په کوټه کې نه وه.غوړګه او مور یې دواړه دابۍ جونګړې ته ورغلې .دابۍ غوا همداسې رمباړې وهلې .دابۍ دکټ پر سر همداسې زندۍ راځوړنده وه.دغوړګې مور غوړګه کلکه په غیږ کې ونیوه ،ښکل یې کړه او په زوره زوره یې وژړل :

—ستا ابۍ لکه چې مور د همیش لپاره پریښوو.

غوړګې په ماشومانه انداز خپلې مورته وویل:

—مورجانې ابۍ به دکوه قاف دیوانو وړې وي!

مور یې ترخه خندا وکړه:

—هو لورې ،ابۍ دکوه قاف دیوانو وړې ده.

غوړګه اومورېې دواړه خپل کورته لاړې .په ټول کوربانديې یو ژور غم خپورو.ددوی خپل خپلوان له ټوپکو سره راغلي وو ،سپین سرې ښځې هم ورسره راغلې وې .دوه غټ غټ پسونه یې راوستلي وو او په مورېیو پورې یې تړلي وو.دپسونو په سترګو هم غم غوړیدلی و.هیڅا خبرې نه کولې .له درنې چوپتیا وروسته یوه سپین ږیري وویل:

—نور ځنډ نه دی په کار.دهغوی کلي ډیر لرې دی ،بسم الله کوئ.پر غوړګې باندې ښایسته کالي واغوندئ چې له ټولو جینکونه ښایسته شي .سپین ږیري غوړګې ته مخ وروااړاوه :

—غوړګې لورې مور اوتاسې ټول واده ته ځو.

غوړګه ډیره خوشحاله شوه ،په زړه کې وروګرځیدل :

ــ که ابې دکوه قاف دیوانو نه وای وړې هغه به هم راسره تللې وای .له ټولو ښځو نه به یې ښکلې سندرې ویلې وای .دې به سندرې راته ویلای ما به ګډا ورته کړې وای.

دوی ټول روان شول.د کلي پر بامونو ناستو پیغلو اوزړو په حسرت حسرت ورکتل.دډیرو سترګې له اوښکونه ډکې وې .یوې زړې ښځې دغوړګې مورته وویل چې ته نوره مه راځه.دغوړګې موریوه سخته کړیکه وکړه .غوړګه یې ټینګه په غیږ کې ونیوه ،پر سترګواو مخ یې ښکل کړه :

ــ ورځه پر خدای مې سپارلې یې ....ښځه چې خدای پیدا کړې ده د پردي کور ده.مړه دې وای خو.......

خبره یې په مرۍ کې غوټه شوه .غوړګې هم چیغې وکړې :

ــ چې مور مې نه ځي زه هم واده ته نه ځم .دمور په لمن پورې یې منګولې کلکې ښخې کړې .یوچا دمورله لمنې راوشلوله .غوړګې چیغې او سورې وهلې :

ــ پرې مې ږدئ زه واده ته نه ځم.......پرې مې ږدئ.

د ټولو له سترګونه اوښکې بهیدې .غوړګه یې له لاسونو ټینګه نیولې وه او په کشولو کشولو یې دهغه لرې کلي په لوري روانه کړې وه .له لونګینو ځوندیو نه یې دغنچې د پیغلتوب بوی ختو.دهغو دوو پسونو هم تګ ته زړونه ،نه کیدل او په کشولو کشولو یې روان کړي وو.له غوړګې نه دابې داخبره هیره وه چې ورته ویلي یې وو:

ــ دکوه قاف دیوان به دې داوسپنې په پنجره کې بنده کړي ،ته خو کوچنۍ یې داوسپنې پنجره به هم نه شې ماتولای.

۹/۸/ ۱۳۷۱ خیبر پلازه پیښور

## د ناهید کتاب خپرولو موسسې له خوا خپاره شوي اثار

| د کتاب نوم | د لیکوال نوم |
|---|---|
| ۱- سا ړه بادونه : | د اسدالله غضنفر د لنډو کیسو مجموعه |
| ۲- تبجنه سپوږمۍ : | د پروین ملال د شعرونو مجموعه |
| ۳- ځلوږمه لار : | د ایمل پسرلي د لنډو کیسو مجموعه |
| ٤- زموږ د کلي پانې : | د زرین انځور د لنډو کیسو مجموعه |
| ٥- دلته لږ زموږ او ر ، بل دی : | په لندن کې د میشتو پښتنو لیکوالو د کیسو ګډ جونګ |
| ٦- ماته شپیلۍ : | د نازک خیال شاعر استاد محمد صدیق پسرلی غزلیزه مجموعه |
| ۷- له نرګسه تر نرګسه : | د کاروان د لنډو کیسو مجموعه |



